# پښتو نوی مصدر

مولف

عبدالرازق «پالوال»



کال، ۱۳۵۰

دغه کتاب دوزمي مجلی د ۱۳٤۹ کال ددرې
گڼو په عوض کې چاپ شو.

دپوهیالی محمدطاهر «علمی» د وزمی مجلی د مسئول مدیر په تصحیح او اهتمام
چاپ شو

# دموضوعاتو فهرست

# «پښتو نوی مصدر»

دغه کتاب چی اوس ددرنو لوستونکو په مخ کی پروت دی دښاغلی «پالوال» دډیر زیار اوزحمت په نتیجه کی منځ ته راغلی دی .

ددغه کتاب دچاپولو په باره کی زه باید په لنډ ډول دومره عرض وکړم چی :

دادبیاتو اوبشری علوموپوهنځی دوږمی مجلی دپرمختګ لپاره یو ګتور تصمیم و نیو اوهغه داچی ددغی پوهنځی داستاذانو علمی اثرونه دی دوږمی مجلی په عوض چاپ شی، چی دهمدغی تصمیم په اثرد ۱۳۴۸ کال دڅلور ګڼو په عوض د (تاریخ څه ته وایی؟) کتاب دچاپ څخه راووت اودپوهنتون په علمی محیط اونوروځایو کی یی ډیرښه استقبال وشو. دوهم اثرهمدغه کتاب دی چی د ۱۳۴۹ــ کال ددرې ګڼو په عوض کی منځ ته راووت .

په دغه نیك اقدام سره که مونږ د یوی خوانه دوږمی مجله پرمخ بیولی ده نودبل پلوه به مود مجلی په عین مصرف باندی ګټور آثار چاپ اود علم اوپوهی علاقمندانو ته وړاندی کړی وی .

زه ددغی پوهنځی استادانو ته د توفیق غوښتنه کوم چی دعلم لمن لاپسی ټینګه کړی اوخپلی جامعی ته د علم په ساحه کی دګټورو خدمتونو مصدرو ګرځی .

په احترام

محمد طاهرعلمی

دوږمی مجلی مسئول مدیر.

۱۳۵۰/۱/۲۰

# پیللوستی

ددغی لندي‌رسالی موضوع زاړه‌اونوي مصدرونه دي . نوي بلنهٔ ئی دا معنی نه‌لري چی دغه مصدري شکل لکه‌چی ترمخه پهٔ به کښی نهٔ خو اوس جعلی یانوي جوړ کړه شوي دي . پیښه داسی نه‌ده . دغه نوي مصدري شکل پخوا هم پهٔ‌به کښی‌موجودۀ . که ترزاړه مصدر زوړ نهٔوئ ، نوی هم نه‌دی .

نوئی نوي له‌دې پلوه بولم چی ترمخه‌مو په دغه نامه اوصفت سره نه پیژندی . ځکه ئی نوداسی هم بللای شو چی دپښتونوي پیژندل‌شوي‌مصدر . یا تردغه لاهم په‌صحیح عبارت د پښتو نوي مصدر څخه‌مرادد‌پښتو اصلی‌مصدر دئ .

اوس چی‌موږ دزاړه اونوي‌ترمنځ قضاوت کوونو لیکونکی اولوستونکی باید تر‌توانه پوری دواړه‌خپل ځانونه‌بی‌طرفه وساتی . دغه کار که ئی‌غیر‌شعوري نه‌وي نواقلا شعوري اوارادي خودې وي . دمخه تردي چی موږ دتضاد په‌منځ کښی ودریږو باید داوله ځانه سره مسلی‌وي چی موږ پهٔړندو سترګود پخوانیو یااو سنیو اصو لواو احکا مو طر فد اري نه‌کوو . بلکه ځا ن ته د وا قعبینو انسانانو په توګه قایل یو چی‌داثبات له پاره ئی اوس دغه پرنسیپ دزاړه او نوي ترمنځ تطبیقوو . یعنی ددغه کارنتیجه زموږ دحقانیت اوواقعیت غوښتنی معیا ري ثبوت دی .

موږ باید نه‌له زړو شیانو څخه نفرت ولرواونه د نوو شیانو په مقابل کی حساسیت څرګندکو . دواړه موږ دژوندانه د پرونیواونننیوشرایطو محصول

دي . تیرئی هیر او راغلی ئی پرسرسر بیر . په ژبه کښې د یوې کلمې تغییر او تحول دو نه اهمیت نه لري . ژبه په دغه راز یوه تحول سره نه کمال ته رسیږي او نه په خوا ریږي . خوداچې په څه څه ئي ځان موږ کړ معنی که څه نه وي بیځه هم نه دی . دیوي کلمې تحول دژبې په شعوري پوهه کښې پخپله اندازه سره اغیزه ښندي چې هغه هم باید وسنجول شي ځود ښې پو هیدنې و سیله گرځیداي شي که یه . دغه علت دی چې یو گرامر په بل پسې کښل کیږي ځو روستنې نسبت ودمخنې ته دژبې زده کړه اوفهم نو رهم اسانه کې .
گرامر پوهان دغې غایې ته درسیدو له پاره نوي لنډي او آسانه لاري لټوي ځو خپلو او پره دوته دژبې لاشعوري اړخ په شعوري تو گه سره صحیح ، بشپړ او مؤ جز انه ور و پیژنې .

دژبنې پوهې له پاره دگرامر لیکنه هم بیلې سویې لري . په ابتدائې سویه له ډیرو عمومي اصولو څخه بحث کیږي . په منځنۍ سویه دژبې دغه عمومیات توسعه پیدا کوي . حتی فرعي اړخونه لا هم ورسره شاملوي . مگر په نهائي سویه له مختصاتو څخه بحث کیږي . یعنې دژبې یوه ډیره خاصه موضوع تو ځیړنې لاندې راوستله کیږي . دهغې مختلف اړخونه بیا نیږي . ځودي له پاره ئې اماده کې چې د عمومیاتو په کمه د له Category باید ور کښیوزي . دگرامر دغه وروستنۍ برخه یوازي دگرامر دزده کوونکو له پاره وي نه دژبې دزده کړیانو له پاره ، یعنې د هغو کسانو له پاره چې د وي غواړي په ژبه و پوهیږي نه دهغو کسانو له پاره چې دوي ژبه زده کوي . زمادغه اوسنۍ لیکنه هم دگرامر په طبقاتي سیتسم کې په وروستنۍ جنبه اړه لري . مطلب داچې موضوع ئې اختصاص ده اود تدریسي گرامر شکل نه لري . ځکه نو لوستونکي باید دژبپوهنې له اوسنیو اصطلاحاتو سره اشنایي ولري چې ځینې ئې ما بیله توضیح څخه استعمال کړیدي .

دمحصلینو له پاره ددغې لیکنې ښیگڼه یوازې دا نه ده چې دوي دز اړه

او نوي مصدر په ماهيت او اصالت وپوهيږي . بلکه‌مهم اړخ ئې ددوي له پاره لا بل دئ . ځرنګه‌چې دوي دسباورځې لیکوال دي او تحول هم له دوي سره اړه لري نوئې ځینو خواو وته توجه وراړوم . دغه تحول او تجدد که‌څه هم کلچري وي یا اجتماعي او که مجرد لساني ، خوشیرنه ئې په‌عمومیاتو کې نسبتاً مشترک روش غواړي . ځکه نود دغې په لاس کې لیکنې په لوستنه کې هیله ده چې دنورو موضوعاتو له پاره دغه لاندنی نکتې په نظر کې وساتلی سې.

۱ــ په جامعه کې دموضوع دمجرد فهم مطالعه په‌سرسري بیاد تاریخي تسلسل په سیوري کې .

۲ــ دموضوع یا شي د مختلفو اړخو شیړنه اوواقعیت ئې په محیط Context کې یا په هرڅو بیلو بیلو محیطو کښې چې دی واقع کیږي .

۳ــ دپورتنیو دوو خواوو تطبیق او نتیجه اخستنه .

٤ ــ دشیړنې موضوع اشتراکي یا اختلافي اویادواړومقایسه له ځینونورو سیالانو سره .

۵ــ زموږ په ژوندانه کې لږداسي‌شیان یاتوکي پیدا کیږي چې بیله معاوضې څخه له منځه ځي‌مګردیرئې باید ددغې پیښې دترسره کیدنې له پاره تعویض شي . که نه ترشدید واو پرځای باندې انتقاداتو لاندې لاهم نه‌له منځه تللي‌دي او نه بیرځوري دمثال په توګه مونږ دخرافاتو ترنامه‌لاندې دیر بي‌ځایه اوغیرضروري توکي‌لروچې دغه واقعیت خلک‌هم‌مني . خوځرنګه چې ئې موږ مناسب اوموزون‌عوض نه‌دئ پیدا کړی نودوی هم دموږ کانو ، لړمانو او نوروخسدانانو په‌دود دننه په کور کې راسره اوسیږي . مطلب‌داسي‌دې : هرڅه‌چې موږ دتحول ور بولو باید داوښتنې له پاره ئې عوض‌واړوځای‌ئي ونیسي . دغه دمناسب‌عوض‌موجودونه نسبت ونورودلایلو او اعتراضاتو ته دتحول مؤثرترین عامل‌دی .

په متن کې نوري کوچنې او فرعي نکتې‌هم‌شته چه‌فهم‌او استعمال‌ئې دلوستونکو ادراک او استفادې ته وروپریږدم . ددغو فرعي نکتو اهمیت پرخپل ځای باندې تر

نو موږو عمومي نکاتو په کمه نه دی.

ددغي رسالي په لیکنه کې می فقط هغه څودا نی پښتو ګرامر ونه ترنظرلا ندې وه چی پښتنو مشرانو دمته په وچ زوراودتندی په خولو لیکلی دې . یعنی ددوی له پاره مأخذ موجود نه وه . ددوی په وخت کی ژبپوهنی دو نه انکشاف نه و کړ ئ . نو هرڅه مواد اواصول چی ئی راغوند کړی اوترتیب کړید ی هغه ئی دخپل همت اوزیار نخښه اونتیجه ده . مادغه پښتو آثارد مخه تردې لیکنی لوستلی وه او ځینی می ئی وروسته تر بشړیدو لوستلی دی. په ځینوځایو کې می مستقیه استفاده ځنی کړیده مګرپه نوروځایو کې می په ارادی ډول سره دغه کار نه دی کړئ . سبب ئی هم داؤ چی ماغوښته خپله ذهنی آزادی وساتلای شم او دعصری ژبپوهنی په رڼا کښې دپښتو یوه سلسله داسی عناصر چی هغه دژبی ددوو دعمده ډلو- اسمی اوفعلو عنا صرو-ترمنځ داتصال کړی وی څیړ نی اومطالعه وکم - ددغه کار په نتیجه کښې زه رشتیا هم له عنعنوی لاری څخه اوښتی او بیخی پر بله خوا باندې تللی یم. نو طبعاً زمادلیکنی اوزما دمتقدمانو دآثارو ترمنځ اختلاف موجودشو چی هغه ته ما په متن کښې مستقیه اشاره نه ده کړی .

دغه اختلاف یوازی دعلمی نظرمولودی او بس .

که موږ دمقدمو مشرانو آثاروته دقضاوت په سترګه وګو رو هغه هریو دخپل وخت یوه بی ساری پدیده ده چی دغه اوسنۍ رساله ئی حتی دسلمی برخی ارزښت لاهم نه شی مو ندلای. داځکه چی په هغه وخت کې پښتانه دعلمی شخصیتو له پلوه څخه ډیر بی کسه او بی کاسی وه نوله طبیعی ما غزوڅخه د چایو کسا سه میدا ن ته راایستنه دوچخولو منتظر ینو او بهور تیرو نه وه. دوی لو مړنی اساس کښیښناوه چی موږ باید اوس پرهغه باندې مانۍ بنأ کو. نن که څوك په ژبه کښې بیخی یو شهکارو لیکی بیا به ئی هم واقعی اهمیت دپخوانیو آثارو په نسبت کم وی . ولی چی نن په دنیا کی ژبپوهنه اونورعلوم ډیر پرمخ تللی دی اوزموږ هرنوی کاربه دنورو یوزوړ کاروی . په هغه برخه کی چی ماله احساسا تو یا په ځان له ډیره باوره څخه کار اخستی وی

او پر موضوعاتو باندې مې قطعي حکمونه کړي وي له خپلو لوستلو نکي څخه بخښنه غواړم . ځکه چې نه دمتقدمانو او نه زما حکمونه دکاني کربنې دي . ژبه له تړولني سره سمه تحول کوي او تر تاريخي زمانو تير يږي .

ژبې لکه ژوي زيږي، لوييږي، خواريږي او مري او يا داستحالې تر اصل لاندې يو بل شکل اخلي. دژبې ځينې برخې ژر ژر او ځينې ئې سو که سو که تحول کوي . دغه رنگه ئې نو گرامر او اصول هم ورسره اوړي. داچې نو موړي دول حکمونه به دژبې په تاريخي مرحله او تاريخي ژبپوهنه کې خپل اهميت نه بايلي سمه خبره ده . مگر که حکمونه رشتيا هم په قطعي ډول سره صحيح وي. ځکه چې زموږ پوهنه دتکامل په جريان کې ده او بشپړه شوې نه ده چې مطلق حکمونه وکړای شو .

له نيکه مرغه څخه موږ د ژبپوهنې په برخه کښې دتخصص خاوندان لروچې په عصري تحصيلاتو مجهزدي . زه له دوی او هم له مجربو مشرانو ليکوالو څخه هيله کوم چې ددغې رسالې ترسره کتنې په هاخوا کره کتنه وکې څود نورو ليکنو له پاره لارسمه شي او هم له لوستونکو څخه بيا بله نيمه پيړۍ لار ورکه نه وي .

پالوال ـ دانتروپالوجي مؤسسه ـ دادبياتو او بشري علومو پوهنځی

کابل پوهنتون .          ۱ ـ وزی ۱۳۴۸

# دگرامر کره او بشپړونه

ژبې د انسانانو سره یوځای پیدا سوې دي. کله چې انسان له لومړي حاله مدني ژوندانه ته رسیدلی دی، نو ژبو هم دده له اجتماعي او عقلاني ارتقا سره سمون کړی او پرمخ ورسره تللي دي.

مگر په ابتدائي انسانانو کې ژبې پخپل اومړي شکل کې وي، خو دهغو د اجتماعي پیشرفت اغیزې وې، چې ژبې هم له خپله لومړني حاله ورو ورو د بشپړتابه پرخوا رهي سوې، او د تکامل تر ناموس لاندې ئې وده او سمیدنه ومنلسه.

دژبو قواعد او گرامرهم طبعاً پخپله په ژبو کې پټ وو، مگر کله چې انسان د تفکر او تعقل دې پوړ ته ورسیدی، چې پخپله وینا سره وپلټي او په څېړنه او شننه ئې بخت شي، نو هلته د گرامر بنیأ دهم موجود سو، او داسې څېړونکي پیدا سول، چې دوی دژبو قواعد سره را ټول کې، او له هغو څخه په مرتبه توگه منطقي نتیجې وا خلې.

له دې جهته پوهان وایي: چې اول ژبه پیدا سوې ده، بیا نو دهغې گرامر جوړ سوی دی. یا ندې ژبه له گرامره نده راوتلې. نو ځکه دژبې گرامر تل دژبې دڅېړنو او پلټنو سره بشپړیدونکی دی، او هر وخت د کره کړنې او کتنې وړ دئ، او باید چې د هرې ژبې گرامر د پخپلې هغې ژبې پر بنا د مطالعه سي.

په پخوانی افغانستان کې دژبو د مطالعې دودونه او علمي اساسونه موجود ؤ او کله چې دا تېک دعاړی پا ښني لوی پوهاند خپل گرامر ۲۵ قرنه دمخه کیښې، په نور بشریت کې لا دژبو دڅېړنې او شننې تلاښ نه و پیدا سوئ.

و

په اوم میلادی قرن کی دعربو فتوحاتو زموږ خلك له پخوانو تهذیبی روایاتو څخه راپرېږي کړه، او دعربو او اسلامی روایاتو او تفکراتو په کړی پوری ئی ونښلول .

ځکه چی عربو د خپل اقتدار او تمدن په وختو کی (۸ - ۹ پیړی) دخپلی ژبی دگرامر څیړني او لیکنی ته هم مخه کړه، او حتی ځینو عجمی پوهانو هم په دې لار کی ډیر درانه کارونه وکړل، کتابونه ئی ولیکل، نو کله چی عجمو دخپلو ژبو لپاره دگرامر کتابونه لیکل، ددوی ومخی ته دعربو دگرامری کتابونو یعنی د صرف او نحو آثار خرا ډیر پراته وو، او په هغو کی دگرامری روایاتو او اصطلاحاتو یوه غوره ذخیره هم خوندی سوی وه .

نو زمونږ پوهانو چی مثلاً دفارسی یا پښتو یا ترکی یا اردو لپاره گرامرونه کښل، ددوی پر فکر باندی دعربی دگرامر لیکونکو تقلید داسی غالب و، چی اکثرو دخپلو ژبو گرامرونه دعربی په تقلید ترتیب کړل، که نه وی دغه ژبی خو آریایی وې، او عربی ژبه سامی وه، او دژبو دغه دوې مختلفې څانگی یو له بله ډیری سره لیری دی .

دعربو په سامی ژبه کی داشتقاق لپاره ډیر مجرده او لنډه ماده او تومنه اسم فعل ؤ، چی له هغه څخه دنورو حروفو په نښلولو نه نور کلمات راوتل. لکه ضرب چی ضارب او مضرب او یضرت او نور افعال او اسمأ ځینی اشتقاق سوی دی، نو ځکه هغه «مصدر» بلل سوی دی .

زموږ دگرامر لیکوالو هم پخپلو ژبو کی کټ مټ دعربی مصدر معنوی مقابل را واخسیت او هغه ئې مصدر وگاڼه، لکه دضرب معنوی مفهوم په فارسی کی زدن، او په پښتو کی وهل - په اردو کی: مارنا

دعربو دغه تقلیدی روایات زموږ په عنعنوی گرامر کی ځای سول، او چا دا فکر ونه کی، چی پښتو په طبعیت کی یوه آریایی ژبه ده، او گرامر ئې دعربی سره نسی سمیدای .

دلته زه دا نه وایم، چی زموږ داسلافو تول له سعیه بیکاره وه، او څه چی ئې لیکلی دی، اوس هغه ټول په کار نه راځی .

مگر دا ضرور وایم: چی دپښتو هغه عنعنوی گرامر د کره کتنی وړ دئ، او ښایی چی د

ز

اوسنی علم تر اساساتو لاندی کره سی.

ځینی داسی خلك اوس هم سته، چی نوو نظر یاتو او انتقادی کتنو ته هیڅ لار نه ورکوی او نه غواړی چی کومه نوی خبره واوری. مګر اوس خوژبه لابراتوار ته تللی ده، او دنوی ساینس په دقیقه څیړنه کی لویدلې ده، او مونږ که غواړو یا نه غواړو، علم خپل کار کوی، او علمی انتقاد هر ناوړه فکر ځبی.

دپښتو په ګرامر کی د «مصدر» تاکنه یوه داسی خبره ده، چی باید دعلم او آزادی څیړنی پر اساس حل سی، او دغه رساله چی ښاغلی پسالوال لیکلی ده، ددغې څیړنی لومړی کړی ده.

زه ددې کتاب کره کتنه ښاغلو لوستو نکو ته پریږدم، او که نور پښتانه هم په دغه خبره کی غور وکی، او خپل فکر په انتقادی او علمی رنګ پر ښکاره کی، ښایی چی له دغو څیړنو څخه دژبی دګرامر په آینده علمی ترتیب کی ښه ګټه ورسیږی.

دا کتاب وروستنی او نهایی تحقیق ندی، بلکه یوه نوې مسئله په نوی څیړنځ ته را اچوی، چی پښتانه ئې په کره سترګه وګوری، که دمنلو وړوی وئې منی، که نه وی ردئې کی.

مونږ په خپل تهذیبی او ادبی ژوندانه کی ډیری داسی خبری لرو چی د څیړنی او شننی وړ وی، مګر ددې جرأت نسته، چی څوك په مسلماتو ګڼل سوو شیانو باندی انتقاد وکړی یا څه وو ایی، او دغه حال یو راز «فکری جمود» را پیدا کړئ دئ.

اوس باید دغه جمودمات سی او په آزاد فکر پر ادبی او علمی او اجتماعی خبرو څیړنی وسی، چی دغه کتاب به داورو پرانیزی.

جمال مینه ـ کابل دحمل لسمه شپه ۱۳۵۰

عبدالحی حبیبی

# Pashto new infinitive

**by**

Abdul Raziq Palwal



Published

by the

Faculty of letters & Humanities

Kabul University

*Printed*

*at*

*Education Press, Franklin Book Program*

*Kabul, Afghanistan*

1971

# دمصدر Infinitive پیژندنه

۱،۱ ــ مصدر یوه عربی کلمه ده چی د لغت له مخی څخه دوتلوځای (۱) معنا ورکوي مگر په اصطلاح کی یو خاص فعلی نامه ته ویل کیږي چی دغه دواړه اړخونه به ئی وروسته په مختلفو تعریفاتو کې ولیدل شی .

زمونږ ترمنځ مروج گرامري کتابونه (۲) دمصدر تعریف رازراز کوي . خو سره له دې بیاهم دغه لږ ؤډیرسره نژدې اوتقریباً یوشانی وی چی په عمومی توگه دغه درې لاندنی ډلی جوړوي :

لومړي ــ ځینی گرامریانئی دمصدر کلمی دلغوي معنی له مخی څخه تعریفوي .

دوهم ــ بعضی گرامریان دژبی هغه فعلی نومونه تعریفوی چه معین کړه وړه لری اومصدرونه بلل شوی دی . دغه پیژندنه هم درې رازه ده :

الف ــ هغه چی یوازی ئی له اصطلاحی اړخه څخه تعریفوی .

ب ــ هغه چی یوازئی له لفظی اړخه څخه پیژندنه کوي .

ج ــ هغه چی دپورتنیودواړوپه مرسته ئی مشترکا تعریف کوي .

دریم ــ نور گرامریان بیاد مصدر تعریف دفعلی نومود خصوصیا تواوهم دمصدر کلمی دلغوی معنی دواړوله مخی څخه وړاندی کوی .

سره له دې چه دوي دمصدر تعریف له پورتنیو اړخوڅخه کوی خودغه تعریفونه ئی بیاهم داغیارواوافرادومانع اوجامع نه دی . یعنی دقناعت وړنه گرځی کـه ئي

---

(۱) الانصاف فی مسائل خلاف ــ ۱۳۰ شم مخ اردو گریمر ــ ۳۰ شم مخ .
(۲) پښتو دری عربی اواردو .

څه هم بیل بیل معرفی کړي اویائی له پورتنتو اړخوڅخه مشترکاو ښووی .

۱ ، ۲ ــ لومړي هغه تعریفونه وړاندی کوم چی دمصدر کلمی پیژندنه پخپله د دغی مصدر کلمی په لغوی معنی سره کوی :

الف ــ «هغه اصل چي مشتقات له ده څخه صدور پیدا کی مصدر بلل کیږی»(۱)

ب ــ « مصدرځکه مصدر نومیدلی دی چه له ده څخه فعل صادرشو ی وی لکه هغه ځای چي اوښان څنی راوزی ددوی د صدورمصد ر بلل کیږی . » (۲)

ج ــ « مصد ر هغه اسم ته وایــی چه فعل او نورداسی مشتق نومونه له ده څخه جوړشی . » (۳)

دلوړو تعریفاتو له مخی څخه هغه کلمات چی مصدرونه بلل کیږی دنورو هغو مسلسلو کلماتو له پاره چی له دوی سره لفظي اومعنوی مشترکی رابطی لری ــ منشاء وی جوړوی . یعنی هغه فعلی ، فعلی اسمی او فعلی صفتی مسلسل کلمات چی د یــو ې معنی اومفهوم مختلف وجوهات ښووی اوهم د شکل له مخی سره ورته او تــړلی وی . له یوې هغی کلمی څخه چی هغه مصدر بلل کیږی نشأت کوی. مګرنه ښکاریږی چی دغه مصدر کلمه به دفعلو، فعلی نومو اوفعلی صفتو غوند ی کلما تو په منځ کی (٤) کمه یوه وی ؟ یعنی هغه خصوصیات چی مصدری کلمات په پیژ نــدل کیږی نه دی ښودل شوی .

دړومبنی تعریف له مخی څخه نه معلومیږی چه د غه دمشتقاتو اصل کلمه بــه اسم وی که فعل او که لاڅرنګه ؟ سره له دې چی دوهم اودریم تعریفونه ئــی اسم ښووی مګراسم هم پخپله کمه یوازینی تاکلی کلمه نه ده . خود دې له پاره چی دغه مصدری اسمو پیژندلی وی ځینونورو ــ دغه رازپیژندنوته چی نسبتاً ئی مصدر په کې واضح کړی وی ضرورت پیدا کیږی .

---

(۱) شرح فصول اکبری ــ ۳٦شم مخ . (۲)الانصاف فی مسائل خلاف دبصریو نو نظریه ــ ۱۳۱ شم مخ .

(۳) دروس نحویه (کتاب سوم ) ــ ۳۹ شم مخ . (٤)دبصریونو په برخلا ف کــو فیون مصدر له فعله څخه مشتق بولی داځکه چی فعل بسیط دی .(الانصاف فی مسائل خلاف) .

۱ ، ۳ (دوهم ــ الف ) دمصدری کلماتـو پیژندنه لـه اصطلاحی اړخه څخه داسې وړاندې کیږی :

۱ ــ «مصدرهغه نوم دي چې پرحالت یاد فعل پـرحدوث باندې بیله زمانـې څخه دلالت وکی »(۱)

۲ ــ « مصدرهغې کلمې ته وایې چې دفعل او کارنـوم وی او زمانه ترې نـه معلومیږی په همدې وجه مصدرته (فعلی نوم ) هم ویل کیږی » . (۲)

ددغو پیژنـدنو په ذریعه سره مصدر ی اسم له خپله عامه مفهومه څخه یوه نسبتاً خاص مفهوم ته راکښته کیږی ځو یو فعلی اسم ځنې مراد شی. ولې دغه بیاهم یوتیا کلې دلالت نه دی ځکه چې دفعـلی اسماؤ له جملې څخه به مصدرعبارت له څرنګه فعلـې نامه‌څخه وی په‌داسې حال کې چې فعلی نومونه‌دمصدرغوندې لکه‌په تعریف کې چې ئې یادونه شویده بیله‌زمانې دلالت څخه‌دفعل پرحدوث او پیښیدنې باندې صدق پیدا کوی اوهم دحالت درلودونکی وی . ددغې نیمګړتیا دلیری کولو له‌پاره‌موږ ته‌داسې ښاییږی چې بایدسر بیره پر پورتینو راوړل شوو تعریفاتو باندې یو‌دریم‌را زداسې پیژندنې ولرو‌چې هغه‌مصدرې فعلی نوم له‌نورو فعلی نومو څخه‌را بیل کړی او‌شرط پر کښیږدی.

۱، ٤- (دوهم،ب) هغه‌تعریفونه چې دمصدر پیژندنه له لفظې اړخه څخه کوی:

۱ ـ «مصدرهغه دی چې په وروسته کې ئې مصدری نخښې (۳) راشی .» (٤)

۲ـ «مصدر هغه کلمه ده چې مصد ر ی نخښې و لر ی او که ئې نخښه‌وورسته‌نې برخه ایسته شی (٥) نودماضی معنی ور کی . » (٦)

---

(۱) صرف ونحو اموزګار ــ ٤۸ تم مخ ( ۲ ) دپښتو اشتقاقونه اوترکیبونه ــ ۳٤ شم مخ .

(۳) دلوړواوړو پیژندنو مصدری نخښې‌می‌ځنې ایسته کړی ددی له‌پاره چې‌عمومی‌جنبه ئې پیداکړی وی .

دغه نخښې‌عبارت له هغه علاموڅخه دی چې دپښتو، دری‌او‌هندی‌ژبود مصد رو له پاره پیژندلې شوی دی . (٤) د ستور پهلوی ـ ٦ یم مخ · (٥) لکه په دری ژبه کې له ګفتن څخه ګفت او له کردن څخه کرد . (٦) ضیاالصرف ـ ۲ هم مخ .

دپورتنیو درورازو مصدری پیژندنو په مرسته سره موږ تش دونه وکړای شوای چی د متداول مصدر په باره کی د ی یوه نسبتاً بشپړه مفکوره پیدا کړای شو داسی :

مصدر هغه اسم دی چی له ده څخه نوموړنه او فعلونه اشتقاق کیږی . دغه اسم عبارت له فعلی نامه څخه دئ ، او فعلی نوم بیا هغه دی چی (تها کلی) نخښی ولری .

له پورتنی څیړنی څخه دغه له ورایه څرګندیږی چی راوړی دری سره رازه تعریفو نه هیڅ یو هم د مصدر د پوره پیژندنی له پاره کفایت نه کوی مګر واړه سره راغونډ کړل شی او یو بشپړ تعریف ځنی جوړ شی . مطلب دادی چی اوس نو باید په یوه داسی تعریف پسی و ګرځو چی هغه له پورتنیو مشخصاتو څخه جوړ روی . خو داچی نوموړی مشخصات به ګرده پکښ ځای شوی وی که ځینی په لاندی ډول سره کښل کیږی .

۱،۵ـ (دوهم ـ ج) هغه تعریفونه چی د معنی او لفظ دواړو له مخی څخه د مصدر پیژند نه کوی :

۱ـ «څیزنده (مصدر) هغه کله ده چه بی له ملاحظی د ذات او زمان پریوه شی دلالت وکی ، مصدر د درستو افعالو څیزنده ده په پښتو کښ نښه ئی که څه هم یوائی (ل) ده خو تردغه لاجوته دری نښی لری : (ل، ول، یدل ) مګر د اشتقاقاتو په ملاحظه ټول مصادر پر پنځو برخو بیلیږی . »(۱)

۲ـ «مصدر هغه لفظ دی چی له ده څخه د فعل اظهار کیږی مګر فعلی لوازم ورسره نه وی او مصدری نخښه ولری .» (۲)

۳ـ«مصدر هغه کله ده چی بیله زمانی څخه یو فعل او کار ښووی او زمانه تری نه معلومیږی په پښتو کی مصدر د لفظ او آخر په لحاظ پر پنځه ډوله دی .» (۳)

٤ـ « مصدر د اسم معنی یوه نوع ده چی کار او کیفیت ښکاره کوی او له زمانی څخه مجردوی ،نښانی ئی په وروسته کښ د مصدری نخښی راتلنه ده » (٤) .

---

( ۱ ) د پښتو دژبی لیاره ـ ۱۳۹ شم مخ (۲) ار دو صرف و نحو ـ ۵۰ سم مخ. (۳) ژبښودنه ٤۱ تم مخ .

(٤) قواعد فارسی ـ ۳۵ شم مخ

هغه دری گون خصوصیات چی مونږ ته له مخنیو تعریفو څخه (۱،۲؛ ۱،۳؛ ۱،٤)
د مصدر د پیژندنی له پاره په لاس راغلی دی په وروستو درو پورتنیو تعریفاتو (۱،۵) کې
ئی لومړی خصوصیت چی عبارت له اشتقاق څخه ؤ کورټ نه لیده کیږی ـ خو هر څه
چی ئی دوه نور خصوصیتونه دی هم خپل کور پوره نه ډ کوی . حتی بیله دمخنیو
درو ډلو مصدری پیژند نو څخه چه زمونږ د پوهی اساس ز دی، بیخی نیمه خوا کیږی
مثلاً یو خو مصدر لفظ او کلمه بولی چی د ټولو ژبنیو اداؤ له پاره
عامی افادې یعنی د لفظ او کلمی تر مفهوم لاندی، اسم، فعل، صفت، قیود، حرف
او نور گرده راځی . سره له دې چی بیله زمانی څخه دفعل اظهار کوی نگ ئی دلفظ
او کلمی مفاهیم تحدیدوی مگر هغی اندازی ته ئی نه سی رسولای څو مصدر دی بشپړ
داسی معرفی کړی لکه له دمخنیو درو رازو تعریفاتو څخه چی په گډه پیژنده کیږی .
ددغی ډلی وروستنی تعریف ئی داسم معنی یوه نوع بولی چی یوه رازنوې افاده ده مگر
پخپله دغه ټکی چی وایی کار او کیفیت ښکاره کوی داسم معنی له جنبی څخه باسی :
دغه لاهم باید پر زیاده شی چی فعلی نومونه داسم معنی او مصداق لرونکی (۱) اسماؤ
تر منځ راتلای شی ځکه چی فعلی نومونه اکثره پر داسو واقعیاتو باندی اطلاق کیږی
چی هغه خارجی شکل لری او مونږ دهغو احساس کولای شو. مگر له اسم معنی څخه فقط
په ذهن کښې پوهیزو. یوازی لومړی تعریف مصدر د(۱،۲) داشتقاق په خصوصیت
سره هم راپیژنی .

۱،٦ ـ(دریم) هغه تعریفونه چه دمصدر پیژندنه دمصدر کلمی دلغوی معنا او دهغه
دا صطلا حی فهم له مخی کوی .

الف ـ «هغه الفاظ چی پخپله له نورو څخه نه وی جوړ شوی مگر له دوی څخه نوم
او متصرف فعل جوړ شی او دغه الفاظ په ناتیا کلمی زمانه کی دهر کار کولو ، کړلو یا کیدلو
معنی ور کی. نو دغه ته مصدرویل کیږی». (۲)

ب ـ« ټول افعال له مصدر څخه جوړیږی . مصدر هغی کلمی ته وایی چی دیوه

(۱) Substantive (۲) قواعد عربی (اردو) ـ۱٦ سم مخ.

کار پر کولو باندې دلالت کوي او په زمانه پورې تعلق نه لري او پخپله له بلې کلمې څخه جوړ شوي نه وي » . (۱)

ج- «مصدر هغه اسم دی. چې د کم کار یا فعل نوم وي او له ده څخه ځینې قسمونه اسماً او فعلونه راووزي.» (۲) .

د- «مصدر هغه اسم دی چې پر حالت یا د فعل پر حدوث باندې بیله د زمانې له قیده څخه دلالت وکړي او د ټولو فعلو او مشتقونو منشأ وي» (۳) .

ه -«فعلي اسم هغه دئ چې د کم کار یا فعل نوم وي او خپله معنی بې د زمانې له تعینه څخه اظهار کي، له فعلي نامه څخه یو شمیر نوري کلمې قانوناً استخراج او صادریږي بنا پر دغه نو فعلي اسم د فعلي مشتقاتو مصدر دئ او په اصلاح کښې زیږنده (مصدر) ورته وایي» (٤).

و- «مصدر په صرف او نحو کې معمولاً دا فعال او هغه برخه ده چې زمانه او شخص پکښې دخالت نه لري او د اسم غوندې استعمالیږي. په داسې حال کې چې د فعل پر حدوث باندې بیله دې چې پر زمانه مشخص او دفعل پر نورو صورتو لکه ماضي او استقبال باندې، اسم فاعل او نورو چې له ده څخه جوړیږي دلالت وکړي، صادقیږي» (۵) .

ز- «مصدر هغه اسم دئ چې د کار د واقع کیدنې یا د صفت او حالت د ښکاره کیدنې په معناوي بیله دې چې پر زمانې باندې دلالت وکړي. مصدر له دې پلوه مصدر بلل شوی دئ چې فعل او مشتق نومونه له ده څخه صادریږي» (٦) .

ددغې ډلې دلو مړنیو دوو تعریفو دغه نقطه چې مصدر به قائم بالذات وي یعنې یو جامد اسم دئ چې پخپله به له نورو کلماتو څخه نوي جوړ شوي مگر له ده څخه به نور کلمات جوړیږي. په بله توگه سره مشتق نه دئ بلکه مشتق منه دی چې ددغې ادعا له پاره ئې د معنی هیڅ ثبوت نشته (وروسته به توزیح شي) .

---

(۱) پښتو قواعد ۵۷ سم مخ .
(۲) اردو گویمر – ۳۱ شم مخ .
(۳) صرف آموزگار (٤) پښتو گرامر -۱٤۸ تم مخ. (۵) دستور جامع زبان فارسی ۸۹ یم مخ .
(٦) کتاب صرف و نحو و قرائت عربي کتاب صرف ۳ یم مخ .

په‌دغه پورتنيو پيژندنو کښې دوړاندنيو په دوديوه عامه ورانی‌شته چی‌هغه دفعلي نومونو تياکنه ده ، يعنی د مصدری فعلی نامه او نورو فعلي نوموترمنځ توپيرنه دی ښووه شوی . خو کم خصوصيات چی ئی بيان شوی دی هغه دځينی فعلي نومو ترمنځ سره مشترك دی مثلاً د زمانی قيد ورسره نه وی او د فعل پر حدوث دلالت کوی . مگر په دغه وروستنی تعريف کښې چی بيا نوموړی ورا نی له منځه وړه شويده نوری ورا نی ئی را پيدا کړی دی. لکه مصدر محض اسم ښووی يعنی فعلي نوموالی او فعلی حدوثيت ( د زمانی بی قيدی ) ئی هيڅ درك نه لری داسی : « اسم مصدر هغه دی چی له ده څخه يوشی مشتق شی او په اخرکې مصدری نخښی ولری.» (۱) دغسی ډيراسمونه شته‌چی يوشی‌ځنی‌مشتق کيزی اومصدری نخښی هم پکښې وی لکه په دری ژبه کښې له گردن څخه گردنه اوگردی،له خويشتن څخه خويشتن،خويش،خويشاوندی. اوپه پښتو کې له‌گومل څخه‌گوملی؛ کوتل، کوتلی، کوتلونه؛ کډهل، کډهلونه اونور. يعنی سربيره پرهغی سلسلی کلماتوچی له فعلی مصدره څخه اشتقاق مومی نور څورا ډير کلمات شته چی داشتقاق له پاره عليحده مصادرلری .

۱،۷- داچی دمځنی‌گرده تعريفونه نيمگړی اودافهام ساحه ئی يا ترضرورت کوچنی اويالويه ده، نوښايیزی چی د پورتنيو پيژندنو په رڼا ئی کښې ئی نسبتاً يوجامع اومانع تعريف وړاندی کړه شی داسی: مصدرهغه تياکلی نخښی‌لرونکی نوم دئ چی په ژبه کښې فعلی اداء اوداستعمال تياکلی اسمی خواوی ولری .

الف ـ ددغسی پيژندنی بدودی: که چيری موږ ديوی ژبی له ساختمان او ځرنگوالی څخه پرمخ ناپوه اوسواو دغه تعريف راوړاندی کړه شی ، له سره څخه به ترپايه پوری داسی اوډلی کلمات پکښې وی چی مصداق اومفهوم به‌ئی مغشوش لاڅه بلکه ورك به هم وی لکه :

۱ـ تياکلی نخښی ئی څه اوځرنگه دی؟ ولی دغه دی اونوری نه دی ؟

(۱)مقدمه بدان

۲ـ په داسي توگه چي مصدر ی نخښي له سوالیي سره مخامخي وی نو فعلي نوم دپخوا په شاني یوعمومي اطلاق لري چي نور د غسي فعلـی ا سمـو نه هـم پکښي شاملیږي .

۳ـ فعلي اداء هم دفعلي نامه غوندي کم تا کلي اطلاق نه لري.

٤ـ ترڅو چي څوک دیوی ژبي دمختلفو کلماتو په صرفي او نحوي ویشنو او اداؤ کښي بلدنه وي دهغو له پاره دمصدر داستعمال تا لـکي اسمي خواوي کم معین مصداق نه لري.

ب ـ دورستني پیژندني ښیگڼي : کله چي څوك دخپلي ژبي په گرامري ترکیب اوجوړښت وپوهیږي نود دغسي پوهني پراساس باندي کولای شي د یوی بلي ژبي کلموی کټگوری له پوړتني تعریف څخه دمخه دژبي ترمطالعي تریوی اندازی پوري وپیـژنـدلای شي. مگر بیاهـم دغه رازپیژندني هغه وخت مؤثری او مفیدي ثابتیږي یا په بل عبارت سره ښه ترفهمول کیږي چي دژبنیو گرامري کټگوریو ترمطالعي وروسته وړاندي شي .

۱ـ دمصدر له پاره فعلیت قیدراوړ نه ، دی دافعالو په سلسله کښي د روی چـي پرکړ نه باندي صدق مومي خوداسي اشاري لکه دفعل پرحدوث دلالت او نوري ئي له زوایدو څخه شمیرلي کیږي چي په توضیح پوري ئي اړه لري .

۲ـ دټولو موجوداتو له پاره اکثره نومونه اودیري لږ نوری اداوی په ژ بـو کښي وضع شوي چي دهغو له جملي څخه مصدر دفعل او کړ ونوم دئ . دغه اسمیت یا اسم بلنه ئي فعلیت تـه تغییرورکوی . داسي چي دزماني قید ځني ایسته کوی شخص ئي له مفهومه څخه باسي اودنیمو مجردو اسماؤ خصوصیات وربخښي ، چي بیائي په تعریف کښي ورسره ځایونه ترضرورت دباندي دی .

۳ـ له دغه وروستني تعریف څخه داشتقا ق صفت په دی نیامت ا یسته شوی دی چي پخپله مصدر کلمه دغه داشتقاق معني افاده کوی یعني دمصد ر د اشتقا قیه صفت ذکرتـه په تعریف کښي ضرورت نشته . ولي چي مصد ر پخپلـه د غه معني لری. له یوی خوا څخه دمصدرداشتقاقیه صفت لرنه او له بلي خوا څخه ئي جا مـد

اسم والی په وروسته کښې څېړل کیږی.

٤ـ د نورو فعلي نومو په سلسله کښې دمصدر تاکنې له پاره دمصدر کلمو ی شکل اواستعما ل پیژندنـه لازمی ده . په څینو ژبو کښی مصدرونه دمعنی له اختلافه سره مختلف شکلونه اخلي او د مختلفو نخښو لرونـکی وی . مګر نحوی استعما ل ئی یو له بله سره ورته وی .

په څینو نوروژبو کښی بیا مختلف فعلی نومونه د استعمال په ساحه کښی سره مشترك وی که به څه هم هرفعلی نوم په هر نحوی ساختمان کښـی دبل هر فعلی نامه په څیرولو یدلای شی مګر معنوی جوړښت اوتطابق به نه شی کولای . دغه رازعدم تطابق دڅینو ژبو مثلاعربی دفعلی نومو اوخصوصا مصادرو په شکلی اختلاف کښی څرګندیدلای شی. یعنی دنخښو بیلوالی له مخی څخه ئی دغه شکلی اختلاف یو ړ از معنوی تو پیرهم دفعلی نومو ترمنځ پیدا کوی. څکه نودهرفعل مصدر رچـی دنخښو واحده سلسله لری معنوی اوشکلی کړه وړه ئی سره یوشانـی وی .

اینفینیتیـیو Infinitive :

۱ ، ۸ـ په ژبه کښی یو تما کلی کلموی شکل چـی موز ئـی په مصدرسره پیژنو او تقریبا ورته شکل ئی په انګلیسی اوپرڅنګ یامربوطو ژبو کی اینفینیتیو Infinitive بولی. دغه دوې کلمی چـی دژبو ترمنځ دمصداقو نو دقرابت له مخی څخه یوه په بلی سره ترجمه کیږی ددوی دنومو پر معنوی اشتراك باندی دلالت نه کوی. بلکه ددواړو معناوی اومفاهیـم فرق سره لری. دمصدرهغی موئـی دمخه په تعریفاتو کښی ولیده اود اینفـینیتـیوهغی به هم اوس پسی بیان شی .

دانګلیسی اینفـینتـیو Infinitive کلمه له لاتین ا ینفینیتـیوس Infinitus څخه راوتلی ده چـی دناتما کلی او بی تعیینه معنـی ورکوی. په ګرامر کښی هم اینفینیتیوو داسی دول فعلی نومو ته ویئل کیږی چـی دتما کلی شخص اوعدد لرونکی نه وی . له دغو نومو ړو مشخصاتو څخه با لعموم دیوې وضعـی یاوجهـی Mood په توګه کار اخیستل کیږی . ګرامریانو په لاتینـی کښی هـم دغه فعلی نوم اینفینیتیوس Infinitus

یا اینفینیتوس مودس Infinitus Modus بللی دی . (۱) دغه اینفینیتیو اساسایو اسم ؤ اواسمی حالات ئی لرل (۲) .

سربیره پردغو یادونو باندی داینفینیتیو پیژندنه داسی کیږی : دغه دفعلی نومو یوداسی شکل دئ چی داسم په توګه وظیفه اداکوی او په عین حال کښی فعلی کره وړه یاصفات هم لری لکه دمفعول لرنه اوهم د قیدی صفاتو Adverbial Qualifiers داشکالو ښوونه (۳) .

موږ له پورتنیو کرښو څخه پوهیږو چی اینفینیتیو هم فعلی اوهم اسمی خصوصیتونه لری . یعنی داسی نه وی لکه فعل چی فاعل غواړی او په شخص اوعدد پوری منحصروی. ددغو یادوونو په وسیله سره نود مقید فعل Finite Verb اوغیرمقید فعل Infinite Verb یاپه ساده توګه سره دناتاکلی یابی تعیینه Infinitive ترمنځ تمیز کیږی (٤) .

له دغه رازبیا نوسره سم اینفینتیو کلمه د ژ بنی موصوفی کلمی یعنی پرهغی باندی چی اطلاق کیږی موجود او بشپړشکل را معرفی کوی . دغه هغه پخوانی دوه، فعلی اوسمی ، اړخونه لری . لومړی که دغه پیژندنه یوازی له یوه منفی اړخه څخه وګورو نوهغه د فعل تمیز تعیین اوناتاکلوالی دی . یعنی په شخصی، عدد اوزمانه پوری اړه نه درلودنه ده. په دغسی صورت کښی نو اینفینیتیو یوهغسی فعل دئ لکه ذکرچی ئی دبی قیدئ ترصفت لاندی وشواوهغه دا چی فعلی خصوصیات نه لری یعنی یو محض فعل دی . که له دوهم مثبت اړخه څخه ورته وکتل شی ، نود پورتنیو مشخصاتو دنفی پرځای باندی ئی دنورو خصوصیات زیادتوب راځی چی دغه عبارت له اسمی مشخصاتوڅخه وی . له دغه سببه څخه

1- Encyclopedia Britannica , vo 1 . 12 , P . 340.

2- English Grammer - p. 266.

3- Webster' s New International Dictionary, 2nd. ed . and
'' '' Collegiate'' 1961.

4- High School English Grammer, p. 115.

نو اینفینتیو ته فعلی نوم Verbel Noun هم ویل کیـږی . دغه وروستنی دلالت واضح دئ مگر تا کلی او معین نه دئ. ولی چی دفعلی نامه تر عنوان لاندی محض اسم Gerund او محض فعل Supine غوندی فعلی نومونه هم راتلای شی .

دغه وړاندینی دوه اړخیزه ویشنه ددې له پاره وه چی په ځیـنو ژبو کی اینفینیتیو اسمی خصوصیات نه لری بلکه یوٌصرف فعل وی لکه په انګلیسی کی او هم په روسی کی اسم ډیر خصوصیتونه لری.

چی هغه ئی په اینفینیتیو کښی نه شی موجودیدلای . یعنی دنوموړی ژبی انفینیتیو اسم نه بلکه یو محض فعل دی .

اوس چی دمصدر داطلاق او معنی ساحه د مختلفو افکارو په رڼا کی تر ممکنی اندازی پوری را څرګنده شوه نوٌبه ئی د شکل او وظیفی له مخی څخه هم مطالعه کړو چی دغه څرنګه تشکل او استعمال لری .

# د مصدري نخښې پیژندنه

د تعریفاتو له مخې څخه چې د مصدریوه مشخصه بیان شویده هغه ئې د لفظي نخښې وجوددی. چې د مصدر په خصوصیاتو کې دغه تیا کلي مورفیمي واحد اساسي وظیفه لري . دغه نخښه په مصدر کښې ځینې ممیزات را پیداکوي چې یادونه ئې ترمخه شویده . اوس به ددغې نخښې په پیژندنه پسې هڅه وکړو څوو پوهیزو چې په پښتو کښې دغه نخښه یوه ، که اوز، اوڅرنګه دی .

۲و ۱ـ تراوسه پورې چې په پښتو کې مصدرله پاره کومې نښخې ښودلې شوې دي هغه عبارت له دغو لاندینو پنځګونو څخه دی .

لومړی: /ـل/ /al-/ دوهم: /ـول/ /wal-/ دریم: /یدل/ /edal/ څلورم: (کول) او پنځم: (کیدل). دلومړ نیودرو نخښو مثالونه لاندې په لنډه توګه وړاندې کیږي:

۱ـ/ـل/ والامصدرونه: دغه داسې مصدرونه دي چې دفعلي مادې په وروسته کې ئې یوازې /ـل/ راشي لکه ، بلل، ویشتل، چښل ، نیول ، کښینستل، پرېایستل.

۲ـ/ول/ والامصدرونه : داهغه دي چې د فعلي مادې په پای کې ئې /ول/ وي لکه لمبول ،اوزدول، پاڅول ، سوځول ، غوزول ...

۳ـ /یدل/ والامصدونه: دغه مصدرونه ددوهمې ډلې له فعلي ما دوڅخه داسې جوړیږي چې د/ـ ول/ دنخښې پرځای باندې د/ـ یدل/ نخښه ورواچوله شي، لکه لمبیدل ، اوزدیدل ، پاڅیدل، کږیدل،سوځیدل ، غوزیدل ...(دپښتوله متداولو ګرامروڅخه ) .

د پورتنیو پنځگونو نخښو په لړ کې مو دلومړنیو درو نخښو مثالو نه وکتل او اوس دهغو له جملې څخه ئې دوهمه اودریمه یعنی د/ـ ول/او/ـ یدل/ نخښې تر څیړنې لاندې نیسو: ۲ـ۲ـ دگرامر په کتابو کښې ئې راوړې دی چې لـــه مصدره څخه د مختلفو صیغو اشتقاق او تصریف په داسې توگه وی چې د مصلر ی نخښې پرځای باندې د فاعلیت /ـ ونکی/ د مفعولیت /ـ لی/ د زمانې شخص او نورو نخښې راوړلې شی نودفاعـــل ، مفعول . . . ماضـــی ، حا ل . . . متکلم مخاطب او نورې فردی اوجمع صیغې ځنې جوړیږی لکه :

| له سوځل (۱) څخه : | له سوځول څخه : | له سوځیدل څخه : |
|---|---|---|
| فاعلیت صفت : سوځونکی | سوځوونکی | سوځیدونکی |
| مفعولی صفت : سوځلی | سوځولی | سوځیدلی |
| حال : سوځی | سوځوی | سوځیږی |

دپورتنی بیان او مثالودتطبیق په صورت کښې دمصدری نخښو تبدیل په فاعلی مفعولی‌زمانی اوشخصی نخښوسره ، دوروستنیودوو(ول) او (یدل) والا مصدرو په باره کښې نه صحیح کیږی . ولی موږئې وینوچې دلومړنی مصد ر (سوځـــل) غوندې ئې یوازی (ـل) په نوموړوفاعلی ، مفعولی ، زمانی اوشخصی‌نخښو سره الیش شویدئ . مگرهرڅه چې د /ـؤـ/او/ـیدـ/نخښې دی په خپلو تېولو مشتقاتو او تصریفاتو کښې خپل ځان نه بې ځایه کوی .

داچې له مصدری /ـؤل/ او /ـیدل/نخښو څخه یوازی/ـل/ په نوموړو ورو سترونوسره الیشیږی نو داسې یوه پوښتنه‌راپیداکوی چې د /ـول/ او /ـیدل/هره

---

[۱] باید بې یادونې پاته نشی چې په عمومی توگه دسوځل کلمه دسوځول اوسوځیدل کلمودواړوپرځای باندې‌مستعمله ده یعنی هم دمتعدی‌او هم دلازمی افعالو اجرا په کیږی‌مثلا سو ځی سو ځیږی ا و سو ځی ئې سوځوی‌ئې . دغه رنگه ئې هم نور شکلونه سر ه مساوی‌کیږی. که دپورتنیومثالوراو ړ نه دمعنوی‌ملحوظ له مخې څخه و ای‌نوښایید له چې د پرځای‌باندې می‌ئې یوه بله کلمه مثال راو ړی‌وای. خو ځرنگه چې زه پر لفظی تغیراتواو الیشید نوباندې زغیږم ځکه می نوترنورو دغه صیغه غوره کړ ه چې دموضوع په افاده کښې سووانیی پیښبوی. بل داچې دسوځل کلمه دسوځول اوسوځید ل کلموپرځای باندې نسبتانوی در ید لی د ه اود ژبې دیوه وروستنی انکشاف شکل ښووی.

مصدری نخښبه له دوو مورفیمو څخه جوړه ده او که یوازی یو، یو مورفیم دی؟ که ئې هره یوه ټوټه دوه مورفیمونه ولری، نو یوه مصدری علامه یوازی یو مورفیمه وی او دوه مورفیمه کیدای نه شی مگر که د / ـ ول ـ wal ـ / او ید ل / edal / هره نخښبه یوازی یو، یو مورفیم وی نو بیا په صرفی او ښتنو کښې تجزیه نه منی . که تجزیه شی نو به ئې هره ټوټه خوشی نامفهومه او بی معنی وی . ځکه چی دیوه واحد مورفیم تجزیه له دغه رازواقعیته سره مخامخ کیږی .

په داسی صورت کښې چی د /ـ ول/ او/ـ یدل/ لومړنۍ ټوټی /ـ و/ او /ـ یـد/ پخپله په مشتقاتو کښې پاته کیږی . هرڅه چی وروستنی ټوټی دی هغه د حال مستقبل ، فاعل اوداسو نورو صیغو له مورفیمو سره الیشیږی چی دغه پیښه دنو موړو ټوټو د بی مفهومی په صورت کښې ممکنه نه ده. داځکه چی لومړی خودفونیمو یوه داسی سلسله هغه چی کومه معنی ونه لری له یوی ریښې یا تنی سره ئې تـړنه په کلمه کښې څه تحول نه راولی. په دغه صورت کښې ئـې وجود بی ضرورتـه اوایسته کونه ئې د کلمی په معنی کښې څه اغیزه نه ښندی . دوهم داچی یوه بیمعنی ټوټه دیوی یامعنی ټوټی سره نه الیشیږی .

اوس نودغه په تیبنگه سره ویلای شوچی دا /ـ ول/ او/ـ یدل/ ټوټـی دواړی یو یو مورفیم نـه بلـکه هره یو ه ئې دوه ، دوه مو ر فیمو نه د ی چی مصد ر ی مورفیم یامصدری نخښبه ئې یوازنی وروستنی /ـل/ دی چی تصریف مومی .

٤٢ ــ مصدری تجزیه: موږ په متداول ډول سره د /ـؤل/ والا او /ـیـد ل/ والا مصدرونه پیژندلی اودغه پیژندنه موهم ډیره دمصدری نخښبو/ـول/ او/ـیدل / په وسیله سره ده لـکه په سوځول ، غوږول . . . اوسوځیدل ، غوږیدل ... غوندی صیغو کښې . دغه دوې نخښبی ددې باعث گرځی چی موږ ددغو مصد رو او ددوی دافعالو ترمنځ ویوراز نحوی اومعنوی ویشنی ته قایل شو. ځکه چی بیـله دغـو نخښبو څخه نوری فعلی مادې سره مشترکی دی لـکه / سوځ ـ Swadz/ د سوځول ( Swadzawal ) اوسوځیدل (Swad zedal ) په مصد رو کښې .

کــه مــو ز د غه د و ه مصد ر ونه د د غی ډ لـی د نو ر و مصد ر و پـه نما یند گــی تجــز یــه او سره مقا یسه کو نــو به سر بیر ه پر پور تنی اشتراك باندی چــی /سوځه-/ دئ ، نور مشترك اجزاء به هم پـه کښې پیداکــو چــی هغه به پر ته له پور تنی فعلی یا اسمی مادې څخه وی . دمثال په تو گه:

/سوځول : swadzawal

په /سوځیدل : swadzedal /دواړو مصدرو کښې لو مړ نی /سوځ ـ - swadz/ او روستنی /-ل: al-/ دواړی برخی سره مشتر کی دی مگر منځنی برخی یی تو پیر سره لری . دغه عبارت له /- و-/-aw-/ او /ـ ید -/- ed ـ/ برخو څخه دی. له دغه اختلافه څخه هغه تو تی ځر گند یږ ی چی دافعالو په معنوی تو پیر کښې اغیزه لری . د/-ۇ-/ یــا /- ed-/مو رفیم دفعل په بیلو حالاتو کښې دتعدی او معلو موالی مفهوم ښو وی. مگر د /ـ ید ـ/یا/ ـ ed-/ مو رفیم بیادلزوم اومجهو لوالی هغی . د دغه تحلیل له مخی څخه دغه و اقعیت چی /ـ ۇ ـ/ او /ـ ید ـ/دواړی ټو تــی د مصدری نخښو برخی نه دی، بلکه هره ټو ټه ځان ته بیله معنی لری او بیل بیل مو رفیمو نه دی، ددوی ځانمن موجودیت ثابتیږی. له دغه لحاظه څخه نودوی دخپلی بشپړی صیغی په معنی کښې تغییر راولی. ځکه چی دپورتنیو دوو مصدرو په مقایسه کښې نوری ټولی برخی سره یو شانی مگر د/ۇ ـ او/ـ ید ـ/ برخی ئی سره بیلی دی . دنو موړودوو مصدرو ترمنځ چی هم کم معنوی اختلاف موجوددئ هغه ئی دیو ه تعدی او معلو موالی اودبل هغی لزوم اومجهو لوالی ښووی. پس دغه معنوی اختــلاف بیله دې څخه چی پر نو موړی لفظی اختلاف باندې حمل شی بله چاره نه شته. ددغه واقعیت په نتیجه کښې د/ـ ۇ ـ/ مو رفیم د معلو موالی او تعدی معنی ښندی . مگر /ـ ید ـ/ د مجهو لوالی اولزوم هغی. اوس نو پور تنی دواړه ډوله مصدرونه له درو مورفیمو څخه جــوړشوی دی چی لو مړی: ریښه Root دوهم: تنه والا مورفیم stem formative morpheme اودریم: مصدری نخښه ده .

نتیجه داچی پښتو (ول) ولااو (یدل ) والا مصدرو نه نه لری او نـه ئی نوموړی

مصدری نخښې دی. هغه نخښې چه ترمخه د (۱) سوځل (۲) سوځول او (۳) سوځیدل غوندی مصدرود پیژندنی له پاره بیان شویدی/- ول/او/-یدل/ئی مصدری نخښې نه بلکه ددروسرو له پاره مصدری نخښې ورستنی مورفیم/- ل al - / دئ .

پورتنی نتیجی ته موږ پس له نژدی نیمی پیړی څخه او په ډیرود لایلوسره رسیږو مګر د پښتو مرکی په بدیهی او قطعی ډول سره دغه مطلب داسی بیان کړی دی : په افغانی ژبه کی دمصدر نخښه مطلق (ل) ده چی ترمخه حرکت ئی مجهوله فتحه وی (۱) .

سربیره پردغه باندې د پښتو مرکه لیکی چی پـه افغانی کی دری ډوله مصدرونه شته یو وضعی چی بسیط وی لـکه تلل، خوړل، بل ترکیبی چی دمتعدی یالازمی کولوله پاره ئی دکوم اسم یاصفت په آخرکی د ـ ول ـ او ـ دل ـ نخښې وراچولی کیږی. که موصوف اسم یاصفت جامد اوغیر مشتق وی پرځای ئی ـ کول ـ او ـ کیدل راځی . اودریم ئی څینومعنوی نوموته اشاره کوی چی ترموضوع دباندی وزی

۵،۲ سربیره پرپورتنودروډولو مصدروباندې دوه ډوله نورمصدرونه پیژندل شویدی چی هغه (کول) والا او (کیدل) والامصدرونـه بلل کیږی. ددغوجوړښت هم لـکه ددمځنیو هغې د (- کول) او (- کیدل) مصدری نخښو په توګه له نورو کلماتو سره تړل کیږی اودغه رازمصدرونه ځینی جوړیږی لـکه:

پریکول، پریکیدل، پخولا کول، پخولا کیدل، غلا کول، غلا کیدل اوداسی نور. دنوموړومصدرو له جملی څخه یوازی دا (پریکول) او (پریکیدل) مصدرونه دمثال په توګه ترڅیړنی لاندې نیول کیږی . کله که دغه مصدرونه تجزیه کړل شی نو به دځلورو بیلو بیلو برخودرلودنکی وی لـکه :

پرې ـ ك ـ ؤ ـ ل: pre-k-aw-al

پرې ـ ك ـ ید ـ ل : pre-k-ed-al

پورتنی تجزیه شوی مصدرونه نسبت ودوودمخـنیو (سوځول اوسوځیدل ) غوندی مصدروته یوه تـوته اضافه لری . دغه اضافه توب نورهم پسی ډیریدلای شی لـکه

---

(۱) (د پښتو پښوویه ۳۳ شم مخ ۱۳۰۲).

غوټ پریکول، غوټ سره پریکیدل او نورداسی ترکیبی شکلونه . مګر د تجزیی او تحلیل داسانۍ له پاره به ئې یو مختصر شکل ترڅېړ نې لاندې ونیول شی. چې هغه به دغه څلور توته ایز شکله مصدروی دمثال په توګه :

غلا ــ ك ــ ؤ ــ ل : ghla-k-aw-al

غلا ــ ك ــ يد ــ ل : ghla-k-ed-al

د (غلا کول) او (غلا کیدل) مصدرونه په تجزیه کښې له څلور و توټو څخه دری توټې مشترکې او یوه ئې مخالفه په لاس راځی. دغه توته عبارت له هغې برخې څخه ده چې په (۳،۲ او ٤،۲) کښې هره یوه دبیل مورفیم په توګه وپیژند له شوه .

له نورو درو مشترکو برخو څخه ئې اومړی توته ( غلا ghla ) یــو دوه مورفیمه اسم دی . خو هرڅه چې دوهمه توته /ك -ka- / ده عبارت له یوه فعلی ریښه ایزه مورفیمه څخه ده / -ka- / او / -aw- / یاد/ -ka - / او / -ed- / واو اونه یاد علت حرفونه د مشابهت ادغام assimilative replacement لری او یا دا چــی /-k-/ یو مورفوفونیم دی .

ددغه رازمصدرو د پیژندنې په خوا کې لومړنی څــرك موږته له دې ځایه څخه په لاس راځی چې یو اسمی آزاد شکل له یوه فعلی مورفیمه سره په ترکیبی قید کښې راغلی دی. یعنی بیله (غلا) څخه (کول) او (کیدل) مصدری نخښې نه بلکه پخپله دوه هغه رازمصدرونه دی چې ترمخه توضیح شول .

# دمصدر څرنګوالی

۱،۳ـ له دمخنیو څیړنو څخه موږ ته دغه نتیجه پهلاس راغله : هرهغه فعل چی مختوم په /ـل/وي مصدر دئ لکه : کتل،ویل، غورځول،غورځیدل او نور . مګر اوس به بنا پردغه نتیجه پخپله په ژبه کښی وګورو چی ددغه راز صیغو د استعمال څرنګه ثبوت اومدلول شته . مثالونه :

۱ـ ده ډیر کتابونه ولوستل. ۲ـ ما خپل څوتنه ملګري ولیدل.

۳ ـ دی کوچنیان وژړول. ٤ـ دوي پهډنډ کښی ولمبیدل.

پهلوړو جملوکښی هغه فعلی صیغی چی پهوروسته کښی ئی مصدري نخښه /ـل/راغلی ده عبارت له ولوستل ، ولیدل ،وژړول اوولمبیدل څخه دي . مګر موږئی لومړي په بدیهی ډول لهاستعماله څخه پوهیږو چی دغه ډول صیغی که څههم مصدري نخښه پکښی شته خومصدري مشخصات نه لري . دوهم دا چی د سرتړنی / وـ / مورفیم چی پرمطلقی ماضی اطلاق کیږي دمصدر ګرده اسمی خصاصیات ورنفی کوی اوپرځاي باندي ئی یوازي فعلی خصوصیات ور تا ئید وي .لهدې پلوه نوپورتنۍ صیغی دمطلقی ماضی جمع افعال دې اودغه رنګه ئی فاعلان اومفعولان ـ چیډیر کتابونه ، څوتنه ملګرې ، کوچنیان اودوي دې ـ هم جمع دی . پهلنډه توګه داسی ویلاې شو چی دولوستل ، ولیدل ، و ژړول اوولمبیدل غوندې افعال چی په سرکی ئی دمطلقی ماضی مورفیم / و ـ / راغلی وې لهلوستل ،لیدل ،ژړول اولمبیدل مصدر څخه مأخوذې . پهبل عبارت

هغه مصدرې شــکلونه چې کهٔې پهسر کېږي / و ــ / ودرلودئ هغهله مصد روالي څخه وزی اویو بشپړ ماضــی فعل ځنی جوړ یـږې .

۲،۳ ــ پورتنـی بیان پوره واضح نهدئ .ولی سر بیره پردې چې د مصدرې شــکل په سر کېږي دې د/و ــ / موجو دیت مطلق ماضی افعال له مصد ریته څخه وباسي ،یوه دلهنورې صیغی هم پهځان کښې ورسره شاملوې لــکه ویل ،و ژل ، ودول اووهل غوندې کلمات . مــگر دغه رازصیغـی کهڅههم په ابتد اء کښـی / و ــ / لرې خود بشپړې ماضــی جمع فعلونه ،نهبلــکهمصدرونهگڼل شو یدې . پهدغه باره کښې یوهداسی پوښتنه پید ا کیږې چې موږ څر نــگه کو لا ی شو د ولوستل او ویل غوندی کلماتود(و)وو ترمنځ دې داسی تمییز ځله و کړ ا ی شو چې یوئی دمطلقی ماضی مورفیم دئ او بل د اصل صیغی صرف یو ږ غ یا فو نیم دئ. ددغـی پیژ ندنی لهپاره دوې لارې شته چې یو ه ئیمعنوې Semantic او بلهئی لفـظی Morphological ده .

الف ــدغه لومړنـی معنوی معیار چې ابتدائــی اوډ ژبــی دږ غید ونــکو لــه پاره اسانه دئ د صیغو پر نحوې استعمال باندې اتـکأ لرې .له دغـی لا رې څخه ددوې ترمنځ دمعنی توپیر واضح کیږې دمثال پهتو گه دغه لا ندینۍ دوې جمــلی سره مقــایسه کوو :

۱ــ دهډیر کـتابونـه ولوستل .

۲ــده ډیر کـــتابونه ویــل .

پهلومـړۍ جمله کی دکتا بو لوستلو کار په ماضی کی بشپړ شوې دئ مــگر پهدوهمه جمله کــیدغه کارپه تیره زمانه کی بشپړشوې نهدې بلـکه دوام لـرې. ځکه نولومړۍ دمطلقی ماضی اودوهمه دجارې ما ضی صیغه ده .

ب ــدنومړودوو ( و )وودتمیز کونـگئلهپاره بل معیارعبارت له مورفیمی تجزیـی څخه دئ داسی :

که چیرې / و / مورفیم نهبلــکه یوداســی فو نیم وې چــیدفعلــی مادې یــا

فعلی مور فیم یوه برخه جوړ وی نودتجز یی په‌نتیجه کښی‌ئی فعلی مور فیم‌بی معنی کیږي اونور نود مورفیمو الی څخه وزي لکه :

| مورفیمونه | فونیم | بی معنی |
| --- | --- | --- |
| وژل | / و ـ / | / ـ ژ ل / |
| ویل | / و ـ / | / ـ یل / |
| ویښول | / و ـ / | / ـ یښول |
| ودول | / و ـ / | / ـ دول / |
| ویښیدل | / و ـ / | /ـ یښید ل / |
| ودیدل | / و ـ / | /ـ د یدل / |

په‌هغه‌صورت کښی‌چی / و ـ /مورفیم وې نود تجزیی په نتیجه کښی فعلی ماده‌خپله ذاتی معنی خوندی کوی اوله مور فیمو ا لی څخه نه په وز ې یعنی بی معنی کیږي نه لکه :

| مورفیمونه | مور فیم | معنی داره |
| --- | --- | --- |
| ولوستل | / و ـ / | لوستل |
| ولیدل | / و ـ / | لید ل |
| وژړول | / و ـ / | ژړ ول |
| وژړیدل | / و ـ / | ژړیدل |

دپورتنی تجزیوی مقایسی په‌نتجه کښې دلومړنی معنوی معیار له معنی څخه داسی ویلای شو چی‌دړومبنی‌تجزیی بشپړ اشکال یاناتجز یه شوی صورتونه لکه وژل ،وهل ، ویل، ویښول اوودول له دوهمی برخی له تجزیه شوو منتجو صورتو لکه لوستل، لیدل، ژړول ، او ژړیدل سره برابردی . یعنی واړه په یوه گته‌گوری Catagory کښی‌سره‌راځی . څرنګه چی دغو وروستنیوصورتو ته‌دمطلقی ماضی مورفیم / و ـ / وراچول کیږي او ولوستل ، ولیدل ، وژړول څخنی جوړ یږی .

دغه رنگه لومړنيو ــ وژل ، ويل اووهل غوندي صيغونه هم نوموړی( و- ) مورفيم ورلـويدای شي اومطلق ماضـی افعال ځنی جوړ وی . په دغه صورت کښې نودغسی صيـغی پهسر کښی دوه ( و )ورونهمومی لـکهووژل ،وويل او ووهل چی ددغو وروستيو اشکالو ،وجوديت پخپله په ژبه کښی دو ژل ، ويل او و هل غوندی کلمو واوونه دمطلقی ماضی دهورفيموالی له اشتباه څخه باسی .

۳،۳ــ لهدوهم تجزيوی مورفيمی معيازه څخه يوبل مشکل را پيدا کيږ ی او هغه دولاړل په کلمه کښی دی.

دغه کلمه بايدچیدوروستنی/ـ ل /مورفيم پهذريعهسرهمصدروی. مگرڅرنگهچی پهسر کښې /و ـ/ لري نو بايددمطلقی ماضی يوجمع غايبفعلوی او (و) ئی تجزيهومنی. ولیواقعيتدغسی نهدئ ځکهچی يوخودولاړل کلمهمصدر نه دئ بلـکه دتلل لهمتداول مصدره څخه د مطلقی ماضی جمع غايب يو بـی قاعدی فعل دی اوبل داچی د (و) تجزيه هم نه منی . که ئی تجزيه ومنله يعنی ( و ـ) موځنی بيل کړاي شواي ،نوپه دغه صورت کښې به ( لاړل ) د نورو پورتـنيو صيغو پـه څير مصد ر وی ا و د استمراری ماضی جمع غايب فعل په توگه به هم کارور کوي . مگرپيښه دغسی نه ده . د(لاړل) شکل داستمراری ماضی جمع غايب فعل کارنه ور کوی بلـکه دغه وظيفه هم د (تلل) دمتداول مصدرپه خوادهٔ. مطلب داچی نه دولاړل صيغه مصدر کيدای شی اونه ئی د(لاړل) صورت چی دغه وروستنی ئی د لومړنی يو لهجوی شکل دي اوداسیايسی چی دولاړwlarپه ساکن واواو ولاړ walar په متحرك واوله غيرموافقت Dissimilation په نتيجه کښې دی له ( ولاړ) څخه (لاړ) منځ ته راغلی وي .(ولاړل) دمطلقی ماضی جمعی يوداسی شکل دئ لـکه د وختلاوويل غوندي صيغوچی ټولی ئی په سر کښې دمطلقی ماضی مورفيم /و ـ/لري .

د پروفيسور ما رگــنستيرن له قوله څخه دغه کــلمه، په اوستا کښې ويدا رته Vedarta د ه .

۴،۳ ــ له پورتنی بيانه څخه دغه استنباط کيږی چی بی دمطلقيت له (و)څخه

نور هغه فعلي شکلونه کوم چې مصدري نخښه ولري واړه مصدرونه دي. مګر دغه حکم بیا هم پرځای نه دئ . ولې چې ننوتل، پریوتل، کښېوتل، کښېنستل، کښېښودل غوندي صورتونه تپاکلي اوواضح نه دي یعنې دغه نه ځنې را ښکار یږي چې دوی مطلق ماضي جمع غایب افعال دي او که هغه صورتونه چې مصدر ګڼل کیږي . ددغې تپاکنې له پاره یوه معیاري وسیله دخج Stress د موقعیت تشخیص دي . داسې که چیرې خج دکلمې پرلومړنی سیلا بې Syllable باندې ؤ نوپورتنی واړه صورتونه مطلق ماضي جمع غایب افعال دي .مګر که پروروستنی سیلابې باندې خج راغلی نو هغه صورتونه ښووي چې مصدرونه بلل‌شوی دي اوهم‌داستمراري ماضي‌جمع غایب افعال جوړوي . پس دمطلقي ماضي مورفیم چې په دمخنیو صورتو کښې /و- /ؤپه دغوو روستنیوشکلو کښې خج دئ . په بل عبارت سره که خج پراو مړنی سیلابه‌وي نو دمطلقیت‌دمورفیم /و-/یوالومورف جوړوي‌چې دغه Supersegmental دی . که دغه خج پروروستنی سیلابه وي نواسمتمراري ماضي جمع غایب افعال اوهم متداول مصدري شکلونه منځ ته راولی . په واضح ډول سره په دغه راز مصدرو کښې شرط دادئ چې خج به ئې پرورستنی سیلابه باندې وي .

۳،۵ ــ دمخنیو مصدري اشکالو لکه کښېنستل دخجې موقعیت تغیر درلودي چې دهغه له مخې څخه ئې موزماهیت معلوم‌ولاي شواي . اوتر دغو دوړانــدي بیان شوو اشکالو له پاره مودمطلقي ماضي دمورفیم/و- / له موجود یته څخه استفاده کوله . ولې داسې کلموی صورتونه هم شته چې دغه دواړه معیارونه پکښې مغشوش دی لکه دبوتلل اویوول کلمات .دوی مصدري نخښې‌اوشکلونه لري مګر مصدرونه نه دي بلکه هغه دمطلقي ماضي جمع غایب افعال دي‌خوددغې خاصې نخښې پکښې په وضاحت سره نه لیدل کیږي .

لومړی خو دغه دواړي صیغې د /بو-/ او(تلل)، /یو-/ او(وړل ) داجزاؤ مرکبات دی چې لفظي‌اومعنوي ثبوت ئې دوروستنیواجزاؤپه استقلال اوبې قیدی کښې پروت دي .دوهم ددواړوصیغو ترمنځ ددغه خصوصیت اشتراك دوی په یوه

کته گوری کښې یاتریوي قاعدې لاندې نه راولي .

ځکه چې ددوهمی کلمی یوورل اوستري برخه(ورل) مصدراود/یو_/ په [illegible]بیا سره د مطلقی ماضی جمع غایب فعل صیغه جوړ وی . دغه رنگه هم دیوورل صیغه داستمراري ماضي جمع غایب فعل هم د ي چې دمطلقی ماضی متناظره صیغه د ه .

د ( یو_ ) معنوی وظیفه او لفظی موقعیت دغه راڅرگندوی چې دي دمطلقی ماضی مورفیم ( و_ ) یوبل الومورف دئ . / یو_/ د /و_/ یـومتحول شکل دئ چې دلفظی غیر موافقت یا عدم توافق ( Dissimilation ) په پیښه کښې منځ ته راغلی دئ . په داسی ډول چې له استمراری ماضی جمع غایب فعل (وړل) څخه دمطلقی ماضی جمع غایب فعل د /و_ / په اضافه توب سره (ووړل) نه جوړیږی دا ځکه چې د (وړل) دکلمی اصلی فونیمیك /و _ / ساکن یابـې حرکته دئ اوهم پنده اوښتی /د/ په پسی ده . له دغه پلوه نود (ووړل) پرځای باندي د (ویوړل) شکل چې لهجوی موجودیت لري منځ ته راځی . دغه د ویوړل صورت د قلب یا تیرو بیرپـه پیښه کښې اوسنی (یووړل) شکـل وځان ته غوره کـړي دی چې متداول مصدرئی (وړل) دی .

د (بوتلل ) صیغی تحلیلی توضیح پیچلی اومغلقه ده.په لومړي نظرد(یووړل) کلمی پرقیاس باندی داسی څرگندیږی چې د(بوتلل)صیغه دی مطلقه ماضی جمع غایب فعل وی اوهم دي ئی د (یووړل) په څیر دوهمه برخه (تلـل) مصد زوی . لومړی حکم صحیح دي مگر دوهم ئی صحت نه لری . ځکه چې یوخود (تلـل) استمراری ماضی جمع غـایب فعل تناظـری تړل دمطلقی مـاضی جمع غا یب فعل (ولاړل) صیغه ده چی ترمخه ئی هم یادونه شویده. بل داچی د(تلل) صیغه لازمی فعل اداء لری مگرد (بوتلل) هغی متعدی ده . بیله کوم گرامری څرکه د ژبی له استعماله څخه دارامعلومه ده چی د (بوتلل) دمطلقی ماضی جمع غایب فعل متناظر داستمراری ماضی جمع غا یب فعل (بیول) صیغه ده او دغه پخپله هم عبارت لـه متداول مصدره څخه ده . مگرداچی دبیول او ( بوتلل ترمنځ څرنگه لفظی رابطه

موجوده ده کم کر ښېږل ئی وهلا ی نه شم . دوهـم مشکـــل ئی دادی چی (بوتلل) خودمطلقی ماضی جمع غایب فعل صیغه ده مګر د (وړیل ) د /و‌ـ/ اود کښیښوول د (۱) خج په څیرئی دمطلقی ماضی مورفیم څه‌دی چی باید د/و‌ـ/څلورم‌الومور ف جوړ کړای شی . دتللل ، بوتل اوبیول کلمات دمعنی اولفظ لـه مخې څخه مناسبت سره اری مګر بی نظمی ئی دیوې تـاریخی عملیې په ترڅ کښې منځ ته راغلی‌ده چی بیان به ئی بیله ثقه شواهد وڅخه یوتش ګمان وی .

۶،۳ ـ تراوسه پوری مویوه ډیره ساده موضوع ترڅیړنی‌لاندی نیولی‌وه چی هغه دمطلقـی مـاضی صیغی تشخیص ؤلـه مصدری څخه . ددغـی پیژندنی له پاره مودوې عمده‌اوڅوفرعی‌یا استثنا یی‌لاری پیدا کړی . عمده لاری ئی دمطلق ماضی مورفیم / و‌ـ / او/۳/ خـج تشخیص دی . هغه صیغی چی دنمونی په‌ډول ترڅیړنی لاندی راغلی وی لاندی‌ذکر کیږی :

مصدری صیغی : لوستل ، کښیښول ، تلل ، وړل ، بیول .

مطلقی ماضی صیغی : ولوستل، کښیښودل ، ولاړل ، یووړل ، بوتلل .

په‌پورتنی‌موضوع کښې‌موږ له دووپوښتنوسره‌مخامخ کیږوچی هغه‌د اسی‌دی :

لومړی ـ آیاکه دمصدروصیغی ته د / و‌ـ / مورفیم ورواچو ه شی نود مطلقی ماضی صیغه ځنی جوړیږی اوکه اصلاله دغی صیغی څخه نومورړ ی مورفیم ا یسته کړه شی نومصدرراپاتیږی ؟

ساده جواب ئی داسی دئ چی دواړه صورته ئی صحیـح دی . مګرپیچلی او تحقیقی جواب به ئی وروسته وڅیړه شی .

دوهم ـ دمطلق ماضی صیغه ولی مصدری نخښه لری ؟ یعنی ولی ئی دمصـدر غوندی په پای کښې د / ـ ل / مورفیم راغلی دئ ؟ دغه پیښه‌وموږ ته دوی اشتباه وی را پیداکوی .

یوه ئی داده چی پښتوبه دیوې فعلی سلسلی له پاره دوه مصدرو نه لـری لـکه بیول اوبوتلل یالوستل اوولوستل دمثال په توګه . دوهمه اشتبا ه ئی دغه ده چی د

/ ـ ل / نخښه به مصدري مورفیم نه وي بلکه دیوه بل خصوصیت لرونکی به وي
د دغې مسئلې دحل لپاره ئې ژبنې استعمال ته مراجعه کوو :

| | |
|---|---|
| ۱. ماليکو نه لوستل . | ۱ـ ماليکونه ولوستل . |
| ۲ـ دوی په اتې ور کښېیوتل | ۲ـ دوی په اتې ور کښېیوتل : |
| ۳ـ د وی کور ته تلل . | ۳ـ دوی کور ته ولاړل . |
| ٤ـ موږ بوداګان بیول . | ٤ـ مـوږ بوداګان بوتلل . |
| ٥ـ تاسی کالی وړل . | ٥ـ تاسی کالی یووړل . |

دښې خوا اود کیڼې خواد جملو ترمنځ توپیر دمطلقیت یا بشپړتوب په مورفیم کښې دئ چې عمده شکل ئې/ و ـ / اونور مختلف فرعی شکلونه یا الومورفونه لري چې ترمخه ئې یادونه شویده . دښې خوادجملو تربحث لاندې صیغې چې دمطلقیت یابشپړتوب مورفیم نه لري ځنګه اشکال جوړوي .

۳، ۷ ـ ځرنګه چې دښې خواد جملومصدري شکلونه د مطلقې ماضې مورفیم / و ـ / نه لري نوالبته مصدرونه به وي . مګر ګرامریانو پرمصدربانـدې داسـې قیدایښې دئ چې بايد اسمي خصوصیت ولري . دغه قیدته دمصدرپه تعریفو کښې اشاره شوې ده.مګرپورتنۍ صیغې چې ترڅیړنې لاندې دي هیڅ یوه ئې هم اسمي خصوصیت نه لري : بلکه بر عکس دښې خواهغې داستمراري ماضي جمع غایب افعال دي . که دغه افعال د کیڼې خواله افعالوسره مقایسه کوو موږته دغه نتیجه په لاس راځي چې دفعل بشپړتوب یامطلقیت مورفیم که نفي اوایسته شي نوعین فعل استمراري حالت غوره کوي . نتیجه داچې دفعلي بشپړتوب د مورفیم په نه والې کښې مصدرپه‌لاس‌نه راځي. هغه‌صیغه‌چې راپاتیږي‌واړه خصوصیتونه‌ئې فعلي‌وي. ذکرشوې‌صیغې‌چې زموږ ترڅیړنې‌لاندې دي‌ګرده دعددله نقطهٔ نظره‌څخه‌یوشکل لري اوهغه عدد جمع دی. دغه واقعیت موږته دپورتنیوجملوله‌فاعلانو اومفعولانو څخه‌چې‌ټول جمع دي راښکاریږي‌نوخود به‌يې افعال‌جمع‌وي ، که‌يې‌چیري‌فاعلان اومفعولان‌مفرد کړل شي نوافعال ئې سمدلاسه دجمع‌حالت ورسره بايلي .

دمثال په توګه :

| | |
|---|---|
| ۱ـ مالیك لوستی | ۱ـ مالیکو نه لوستل . |
| ۲ـ دی په اتڼ ور کښیوتئ. | ۲ـ دوی په اتڼ ور کښیوتل . |
| ۳ـ دی کورتـه تلی . | ۳ـ دوی کورته تلل . |
| ٤ـ موز بوده بیوی . | ٤ـ موز بودګان بیول . |
| ٥ـ تاسی کالی وړئ. | ٥ـ تاسی کالی وړل . |

له پورتنی مقایسی څخه موږ ته دغه نتیجه پـهلاس راځی چی / ـ ی / دافـراد مورفیم او/ ـ ل / دجمع مورفیم دی دغه نتیجه زموږدپخوانی پو ښتنی چی دمطلق ماضی صیغه ولی مصدری نخښه لری ، جواب وایی. هغه داسی چی دمطلقی ماضی صیغه مصدری مورفیم نه لری بلکه په وا قعیت کښې دجمع مورفیم / ـ ل / لری . دغه سبب ؤچی هم دمطلقی ماضی غایب افعال فاعلان یامفعو لان جمـع او هـــم داستمراری ماضی غایب افعال فاعلان یامفعولان جمع وه . یعنی ددو ی ترمنځ د جمع مورفیم / ـ ل / مشترك ؤ.

دپورتنیو مصدرنمـا اشکـالو فعلوالی به ښایـی چی ځینولوستونکوته ډیر ســاده ایسی . مګرموږمجبور یوچی وئی ازمویو . ځکه په کتـاب کښې ئی راوړ ی دی چی‌دغه رازاشکال مصدرونه دی. دمثال په تو ګه : بوتل ،لاړل ،راغلل او ګورل ئی داشتقاق اوتصریف له مخی څخه قیاسی مصدرونه او بیول ،تلل ، راتلل او کتل ئی غیرقیاسی مصدرونه ګڼلی دی (۱) .

۸،۳ ـ ترمخه ددی یادونه وشوه چی ښایی پښتودی دیوی فعلی سلسلی له‌پاره دوه مصدرونه ولری .

دغه پیښه‌هغه وخت امکان پیدا کوی چی‌لوستل اوولوستل غرندی کلمات دی سر بیره‌پراستمراری‌اومطلق‌ماضی جمع فعل والی باندی نورمصدری خصوصیتونه هم ولری . لومړی داچی باید دواړه موازی یاتناظری تصریفی اواشتقاقی اشکال

(۱) دپښتو پښویه ٥٦ سم مخ .

وښووی. ددغه مطلب د افادی له پاره یو کوچنی مقایسوی جدول وړاندی کیږی:

| نوع | مصدر | ماضی | حال | مستقبل |
|---|---|---|---|---|
| استمراری | لوستل<br>ویل | لوستې<br>وایه | لولی<br>وایی | لولی به<br>وایی به |
| بشپړ | ولوستل<br>وویل | ولوستې<br>وویایه | ولولی<br>ووایی | ولولی به<br>ووایی به |

اوس که نو (ویل) غوندی اشکال مصدر و بلل شی (وویل) غوندی بهسم ورسره مصدر کیږی. دغه ځکه چی اوستری شکل دلومړنی غوندی خپله سلسلهمستقل تصریفات لری.
ددغی ادعاپه مقابل کښې دیوه داسی اعتراض کیدنه چی دوهمه ډله د (وویل) افعال هم د (ویل) له مصدره څخه مشتق دی. دتردیدله له پاره ئې دغهلاندی دوه دلیلو نهوړاندی کیدای شی .

۱- گرامریانو دمصدر په تعریف کښې له ده څخه دنورو کلمو راوتل داسی مقید کړی دی چی باید دمصدری نخښې په الیشیدنه سره ئې دنورو صیغو تصریف او اشتقاق صورت مومی. تر دغه قید او قاعدې لاندی که مثلاً (لوستل) مصدر شی (ولوستل) ځینی مشتق کیدای نه شی. ولی چه مصدری علامه ئې نه ده تغییر شوې او د گرامریانو شرط نه دی پکښې پرځای شوی. نو کیدای شی چی د (لوستل) او (ولوستل) غوندی صیغی دی دیوی فعلی سلسلی دوه متناظر مصدرونه وی .

۲- که دتناظر و اصل ته اهمیت ورکړه شی او یو معیاری شکل اختیار کړی نو د هر استمراری فعل مصدر به لکه (اوستل) پهخپل تول (۱) کښې د بشپړ فعل مصدر لکه (ولوستل) ولری. دافعالو تصریف که له استمراری مصدره څخه صورت ومومی نو ئې له بشپړیزه مصدره څخه هم په متناظره توگه مومی. په کومه توگه چی د مصدرو ترمنځ تناظری

(۱) تول د «ت» په سکون دهم وزن او هم برابر په معنی دی .

تصریف Paradigmic Parallelism موجودوی دغه رنگه ئی دتصریفی فعل اشکالو ترمنځ هم ساتل کیږی او دغه دمتناظر بشپړیز مصدر قیاسی موجودیت ثابتوی. یعنی لکه څرنگه چی داستمراری افعالو مصدرشته دغه رنگه هم دبشپړو افعالو مصدر وجود لری چی لاندی ئی دمثال په توگه یوه تناظری او موازی سلسله وړاندی کیږی:

| لوستل | ولوستل |
|---|---|
| لوستئ | ولوستئ |
| لوستلم | ولوستلم |
| لولم | ولولم |
| لولی | ولولی |

ترپایه

د(اوستل) مصدر متناظر مصدر (ولوستل) دئ او له دوی دواړو څخه یوه موازی سلسله افعال تصریف مومی چی مثال ئی پورته ذکرشو. ددغو دوو مصدرو اود دوی دفعلی تصریفاتو ترمنځ توپیر تش دبشپړیز یا مطلقیت دمورفیم /و-/ په وجود او عدم کښې پروت دئ .

له پورتنی تناظره سره سم که (لوستل) غوندی صیغی مصدرشی نو (ولوستل) غوندی صورتونه ئی هم دخپلی تصریفی سلسلی پر اساس باندی ورسره مصدر کیږی. سربیره ئی پر دغه تصریفی خصوصیت چی گرامریانو د مصدر په تعریف کښې هم شامل کړی دئ.، دوه نور علتونه شته چی موږ د(ولوستل) غوندی صیغو له مصدروالی څخه پښیمانه کوی. لومړی علت دادی چی موږ په عنعنوی ډول سره چی هغه هم گرامریانو راباندی تحمیل کړی دی، ( ولرستل ) غوندی صیغی دبشپړو (مطلقو) ماضی جمع غایبو افعالو په توگه پیژنو . دوهم علت ئی دادئ چی د (ولوستل) رنگه مصدرونه دگرامریانو یو بل شرط چی هغه اشتقاق دی په بشپړ ډول سره نه شی پوځای کولای. یعنی له دوی څخه فاعلی او مفعولی صفات لکه Walwastunkey * ولوستونکی او Walwastaley * ولوستلی نه شی جوړیدای. که موږ ددغو علتو له مخی څخه د(ولوستل)

صیغه له مصدریته څخه وباسو اویوازې ئې دمطلقې ماضي جمع غایب فعل وبولونو
د(لوستل) غوندی صیغې هم خپل مصدروالی بایلي اویوازې داستمراري ماضي جمع
غایب فعل حالت غوره کوي. دغه ځکه، که یوه صیغه فعل شي او بله مصدرنو دپښتو
افعالوترمنځ تناظري ساختمان ورانیږي. ددې له پاره چې دغه فعلي تناظرموساتلي وي
نوویلای شو چې له دواړوڅخه به یولا هم مصدرنه وي بلکه دواړې یو داستمراري
او بله دمطلقي ماضي جمع غایب فعل صیغې دي .

۹،۳ـ گرامریانودغه موضوع چې لوستل، ویل، ویول اوویدل غوندی صیغې
مصدرونه او/ ـل/ئې مصدري نخښه ده موږ په مغزکې راکښینولې ده. له بله اړخه
څخه موږولیدل چې دغه نخښه له استمراري اومطلقو ماضي جمع غایبوا فعالوسره هم
مله وي. په داسې صورت کښې نوموږ څرنگه پوهیدلای شو چې کمه صیغه مصدر او
کمه ئې نه ده؟ ددغې پیژندنې لپاره زموږ لومړئ معیارددغه رازصیغوترکیبي استعمال
دئ لکه ویل کیږي، ویل شوی دی، ویل شوی وه، وبه ویل شي اونورداسې. په دغو
ترکیبو کښې د(ویل)صیغه دگرامریانو له قوله سره سم اسمي خصوصیت ښکاره کوي
چې په مفرد اوجمع حالت کښې دغه رنگه هم په حال ماضي اومستقبل کښې خپل یوازنې
مصدري شکل ترپایه ساتي. یعنی دماضي غیاب اوجمع یا افراد خصوصیتونه نه لري او بل
که ئې چیرې په مضمونه کښې پراته هم وي هغه په دوی پوري منحصرنه بلکه په
وروستنیو ترکیباتو پورې ئې اړه لري.

په(۲،۵) کښې مومصدرونه لکه وهل کول، نیول کیدل او نورداسې مصدرونه
څیړلي دي اودغه موضوع چې ( ویل ) غوندې صیغې په فعلي ترکیبي استعمال کې
دجاري ماضي جمع غایبوافعالو صیغې نه دي په خورا وضاحت سره تصدیق کوي .

اوس چې پورتنې غوندې صیغې په ترکیبي حالت کښې داستمراري ماضي جمع غایبو
افعالو له قیده څخه آزادې شولي، نوکیدای شي چې مصدرونه دي وي؟ یه نه! ځکه
چې په لومړي صورت کښې ئې ترکیبي یامصدروالامصدرونه جوړ کړي اوپورتنې
اشکال هم د (ویل کول) له مصدري مصدره څخه مشتق دي. ددغه ترکیبي مصدر

(ویل کول) دوهمه برخه (کول) بیاهم د استمراری ماضی جمع غایب فعل تر اشتباه لاندی راځی. داچی لومړی برخه ئی له دغه قیده څخه ازاده شوی ده تریوه بل قید لاندی راځی چی هغه ئی ترکیبی صورت دئ. دغه شرط دنوموړی صیغی مصدر الی په واقعیت کښې ور ورانوی. دغه ځکه، که چیری مصدر تر دغه راز شرایطو لاندی، چی یوځو به فعلی اسم وی او بل به دبشپړوونکو Auxiliary افعالو په ترکیب کښې عمده برخه جوړوی ، ومنلی شی، نود وروستنی شرط له پلوه څخه به دغه یوازی دپښتوژبی مصدری خصوصیت او بیله بشپړوونکو افعالو څخه به مصدر کم مستقل موجودیت و نه لری . بل داچی دمصدری نښی موجودیت اودهغی تصریفی او اشتقاقی خواص چی گرامریـــان ئی دهغو له مخی څخه پیژنـی له منځه ځی . په دغه صورت کښې داسی صیغو ته څه مصدروالی هم نه ورپاتـیږی . سر بیره پر دغه باندی داسی اشکال له پورتنی تنـــاظری پوښتنی سره مخامخ کیږی چی لاندی ئی تر نظر بـــاسو .

۳، ۱۰ـ مصدر په ترکیبی شکل لکه ویل کیدل ، لمبول کیدل ، نیول کـیدل او نورداسی د (۳،۸) په څیر تناظری ساختمان لری . تر مخه موهم ددی یادونه کړیده چی مثلاً (لمبول کیدل) غوندی مرکبه صیغه دوروستنی برخی (کیدل ) په ذریعه سره دجاری ماضی جمع غایب فعل جوړوی نوځکه پ، مقابل کښې د مطلقی ماضی جمع غایب فعل صیغه (ولمبول شول) دریږی . پدغه موضوع کښې یوه بله باریکی شته چی هغه د مطلقیت دمورفیم /و-/ موجود یت د ترکیبی مصدر په او مړنی برخه کښې دی او ددوهمی برخی (شول) سره یوځای کیدنه ده . د مثال په توگه ددوی تناظری سلسله په لاندی ډول ده :

| لمبول کـیدل | ولمبول شول |
|---|---|
| لمبول کیدلـم | ولمبول شوم |
| لـمبول کیږی | ولـمبول شی |
| لنمبول کیدی به | وبه لمبول شو |

تر پایه

د پورتني تناظري ساختمان تو پيرد (۸،۳) له تناظري سلسلې سره دوه اړخه لري اودواړه ئې غبرگون ښووي . لومړی داچې په دغه اوسني تناظر کښې نسبت د مخني ته صيغې ترکيبي يا غبرگي دی . دوهم داچې دفعلي بشپړتوب يامطلقيت مو ر فيم په (۸،۳) کښې يووستوی او په تربحث لاندی سلسله کښې غبرگ دی .
يړله دغودوو مورفيمو څخه د مخه ترڅيړ نې لاندی نيول شوی اوهغه دبشپړ تـوب مو ر فيم / و ـ / دی . د فـعـلي مطلـقيت د و هـم مور فـيم د ( شول ) پـه صيغه کښې پرو ت دی . دغه وا قعيت موږ تـه هغـه مهال په ثبوت رسيږی چې د (شړل) سره‌د (ولمبول) پرځای باندی يو صفت راوړه شي لـکه (غوڅارشول) او (خوږشول) که څه هم په دغودوومثـالي ترکيبو کښې د (ولمبو ل )دمطلق فعـل مورفيم (و ـ) نشته مگر بيا هم‌د (شول) په صيغه سره د غوڅاريدو اوخوږيدو واقعه بشپړه شويده . دغه معنی داچې د (شول ) صيغه پـه ځان کښې د فعلي بشپړ توب مورفيم لري چې هغه عبارت له فعلي‌ريښې / شه ـ/ څخه دی . پس نو/شه ـSh/ د مطلق فعل مورفيم/و ـ/يو بل‌الومړرف دی .

يو بل واقعيت دادی چې (لمبول) او(ولمبول) صيغې يوه د بلې متناظره ده : مگرپه پورتني مثال کښې‌خپله تناظري تصريفي سلسله نه تعقيبوی بلکه خپل واحد شکل ترپايه هغسي‌ساتي . مگرهرڅه چې دترکيبوروستی برخې دی يعني ( کيدل) او(شول) خپل تناظري تصريفي سلسلې ترپايه په موازی ډول سره برابرخوندی کوی . له دغه پلوه نوخپل‌مصدروالي له دوولاروڅخه له لاسه ورکـوی . يوه لارئې ترکيبي ده اوتر مخه ئې هم يادونه شوی ده چې په ترکيبي مصدرو کښې له (لمبول کيدل) دوهمه برخه پرجاری ماضي‌جمع‌غايب فعل باندی اطلاق کيږی يوعلت خودغه د (لمبول کيدل) دوروستی برخې ( کيدل) جمع والي د ی چې د تناظرله مخې‌څخه د(ولمبول شول) وروستنی برخه (شول) له مصدريته څخه باسي. دوهم علت ئې دادی چې موږد (شول) په صيغه کښې دفعلي بشپړمورفيم/ شـS- / چې د/و ـ/ الومورف دی پيدا کړ.

له دوهمی لاری د تناظری تصریفی موازیوالی له مخی څخه پر (شول) باندی هم د (ولمبول) په توګه د بشپړی ماضی جمع غایب فعل حکم کیدلای شی . دغه ځکه چی په مقابل کښې ئې د(کیدل) استمراری ماضی جمع غایب فعل موجودیت لری . که چیری یو له دوی دووڅخه مصدرو بلل شی، دوی داسی نتیجی ورکوی چی یوه ئې دتناظرورانی او بله ئې بالعکس ددواړو د مصدریت منـنه ده . یعنی که چیری (کیدل) مصدر شی نو (شول) هم ورسره مصدر کیږی او له دغو سره سم به (لمبول) او (ولمبول) غوندی صیغی هم مصدرونه شی . ددغی نتیجی حاصل به داوی چی د پښتو افعال که منظم وی او که غیر منظم دوه بیل مصدرونـه به لری یو به ئې استمراری Imperfect لکه (لمبول) او (کیدل) او بل به ئې مطلق یا بشپړ perfect مصدرونه وی لکه (ولمبول) او (شول) .

۱۱،۳ ـ تر پورتنیو ترکیبی شرایطو لاندی دنومړو صیغو مصدر کیدنه موږ ته له یوی خوا څخه لاهم قناعت نه شی راکولای . ځکه چی ددوی له مصدری منني سره باید نور شرطونه هم قبول کړو که نه وی منله به مو ئې ناقصه وی . ددغـی موضوع دپوهیدنی له پاره باید دغه لاندنی پوښتنه راسر بیره کړو چی ـ مصدرونه له ټولو بشپړوونکو Auxiliary افعالو سره ترکیبیږی او که له یوڅو محدودو سره ؟ او یا بشپړوونکی فعلونه له ټولو مصدرو سره ترکیبونه جوړوی او که له یو څو ټاکلو سره په لومړی صورت کښې خویوازی (کول) او (کیدل) له مصدرو سره ترکیبیږی. هرڅه چی نور بشپړوونکی افعال دی هغه بیا له دغو ترکیبو سره په ځینو ټاکلو ځایو کښې ترکیبونه جوړوی ،چی دغه هم دنومړو افعالو ترمنځ ذاتی اختلافونه ښووی. په دوهم صورت کښې چی کم مصدرونه له (کول ) او (کیدل ) سره تـر کیبیږی شمیر ئې ډیر محدوددی او د خصوصیاتو له مخی څخه ټاکل کیدای شی لکه :

۱ـ لازمی مصدرونه له (کول) او (کیدل) سره نه ترکیبیږی .

۲ـ ډیر متعد دی مصدرونه د (کول ) له بشپړیدونکی مصدره سره ترکیبونه نه جوړوی او ډیر لږ ئې په ځینو خاصو صورتو کښې له څو محدودو افعالو سره راتلای

شي ،خوله (کیدل) سره په عمومی توگه نه ترکیبیږی .

۳- دیرمعلوم متعدی مصدرونه له (کیدل) سره ترکیبیږی مگر له (کول) سره نه شي ترکیبیدلای .

٤- هر څه چی مجهول متعدی مصدرونه دی له (کید ل) سره نه راځی او له (کول) سره په داسی ډول را تلای شي چی عمومیت نه لری .

له پورتنی بیانه څخه دغه‌له ورایه څرگندیږی چی‌دمصدروتر کیب عمومیت نه لری . ځکه نو یو ځودغسی محدود شکلونه ترترکیبی شرایـطولاندی مصدر کیدای نه شي .

۱۲،۳- که چیری پورتنی نتیجه بیاهم تراشتباه لاندی وی او پر دغوتربحث لاندی صیغوباندی بیاهم د مصدریت گومان موجود وی نوئی تاریخی اولهجوی اړخ ته مـخ وراړوو .

زما پرلیکنـی باید ځینو دقیقولوستونـکو انتقاد کړی وی چی دغه د مخنـی مثالونه ما ولی‌لوستل کیږی،لمبول شوی دی، اوویل کیدای غوند ی کښلی دی . یعنی په اوی لاس می د مصدری شکل خوا ته وړپوری وهلی دی . د دوی اصلی اشکال دمثال په توگه لاندی وړاندی کیږ ی : .

| الف - ب - ج | د - ه |
|---|---|
| غایب مفرد - مذکر : لمبولئ شوئ دئ | لمبولئ - دئ |
| غایب - مفردمونث: لمبولې - شوې - ده | لمبولې - ده |
| » - جمع - مذکر: لمبول - شوی - دی | لمبولی - دی |
| » - » - مونث: لمبولی - شوی - دی. | لمبولی - دی. |

په پورتنی‌مثال کښی«الف» سلسله صیغی چی په‌متداول ډول سره له (لمبول) څخه مشتقی بلل کیږی تولی مفعولی صفتونه دی . دغه وجیـهه‌ئی‌هغه وخت ښـه څرگند یږی چی د(شول) سلسله‌ئی له منځه څخه‌ځنی‌وایستله‌شی، نوبه د(لمبولی دئ) غوندی پاتی‌شي لکه د « او ه » سلسلی .

داچې دپور تنيوغوندي مفعولي صفاتو دمختلفو مورفيمي وروستړ نو مراعات مي په خپله ليکنه کښې ولي نه دي کړي علتونه ئې په دې شاني دي :

۱- د «الف» صيغو وروستني مورفيمونه موږ ته شخصي اوعد دراښووی چې څواوڅوك دی مګر کله چې د «الف» صيغودغه مورفيمونه ايسته کړل شي، موږ پخپله افاده او استفاده کښې څه تـکليف نه حسوو. ځکه چې «ب» سلسله او دغه رنګه «ج» سلسله کلمې هم دغه وظيفه اداء کوی .

۲- نن په زغيدنه، ليکنه او لوستنه کښې عمومي تمايل دی خوا ته دئ چې «الف» سلسله يعني مفعولي صفتونه له مختلفوشکلـوڅخه ويوه شکل ته راکم کړی يعنـی يوشانی ئې کړی . د اختلاف مراعات ئې دکندهارپه شاؤخوا کښې، ځينې نوری لهجې اوځوليکوال کوی. خو په عمومی توګه په / ــ ل / اوحتی په زوره کی / ــ ه a / سره تخفيف کيږی .

له پورتني کتنې څخه بيا هم موږ ته مصدر په ترکيبي صيغـو کښې پـه لاس رانغلئ بلکه عدم اونه والی ئې دمفعولي صفت له پيژندنې څخه ښه تراواضح کيږی .

۱۳،۳- اوس موږ څه کولای شوځوو پوهيږوچې دلوستل او تلل صيغې به چيرې او څرنګه مصدرونه وی . دغې پوښتنې ته موږ نحوی جواب ورکولای شواوهغه داسی: که چيری لوستل او تلل غوندی صيغې دجملو يا کلام په داسې برخوکښې راغلې چې هورې د (ولوستل) او(ولاړل) غوندی صيغې همه را تلای شوای ، نوپه دغسې ځايوکې د ( لوستل ) او ( تلل ) په شانې کلمې مصدرونه نه بلکه د ( ولوستل ) او ( ولاړل ) مطلقوماضی جمع غايبـو افعـالوتناظري موازي جوړې دی . يعنـی داستمراري ماضي جمع غايب افعال دی . که ئې دمطلقي ماضي غايب جمع فعلي شکلونه پرځای باندی نه شوای دريدلای، نوهورې مصدرونه دی لـکه :

۱- دده لوستل زده دی .
۲- ستانورتلل ښه نه دی .
۳- پاخه لوستل سړی رسوی .
٤- تلل دی ترنه تللوګټور دی .

په پورتنيوجملوکښې لوستل، تلـل اونورهم نوع ئې داسې صيغې دی چې دمطلقي ماضي جمع غايب فعـل اشکال ئې لـکه ولوستل ، ولاړل او هم مثله ئې

پرځای باندی نه شي دریدلای . پس نودتناظرله مخې څخه دوی هم داستمراری ماضي جمع غایبوافعالوصیغې نه دی. نوبنایي چې مصدری شکلونه به وی .

بیاهم یوه داسې پوښتنه شته چې دپورتنیوجملوفاعلان مفرد مګرفعلي اشکال یاصفات ئې نوولی راغلي دي؟ ددغې پوښتنې دجواب له پاره په وړاندنیوجملو کښې بله داستفسارمرجع نشته بیله دې څخه چې وپوښتو: آیامصدرونه پخپل ذات کښې جمع وی او که مفرد؟ که دوی له لویه سره څخه مفردوی په پورتنیوجملوکښې استعمال شوی اشکال مصدرونه نه دي ولی چې دجملي وروستني او یوازنۍ فعل او هم ئې صفتونه دجمع والي اطلاق پرکوی. که چیری مصدرپه خپل ذات کښې دجمع خصوصیت ولری، نوآیادغه جمعوالي ئې داستمراری جمع غایبوافعالو سره څه اشتراك نه بنووی ؟ یاکه به ئې جمع والي یومصدری خصوصیت وی؟ وروستني صورت صحت ولری نو باید چې دمصدرپه پیژندنه کښې ئې دغه دجمعوالي مشخصه هم وراضافه کړه شي. که نه وی نوئې دوړاندنی څرك له مخې څخه داسې ویل کیدای شي چې په پورتنیوجملوکښې دلوستل، تلل او هم مثالي صیغې داستمراری ماضي جمع غایبوافعالوانتقالي اشکال دي . یعنې دغومصدربلل شوواشکالوپه واقعیت کښې له استمراری جمع غایبوافعالوڅخه وده کړې او یعنې دغـومصدربلل شوواشکالوپه واقیت کښې له استمراری جمع غایبوافعالو څخه وده کړې او فعلي اسمي حالت ته ئې انتقال موندلئ دئ. په واضح ډول سره استمراری جمع غایب افعال او نورفعلي اوفعلي صفتي اشکال له دغه رازمتداول مصدره څخه نه دي را وتلي بلکه پخپله دغه مصدرنومیدلي شکل لاهم له استمراری جمع غایب فعلي شکل څخه منځ ته راغلئ دئ . پس نودمتداول مصدردغه موجوده شکل داستعمال او تشکل له مخې څخه دجیرند Gerund موقعیت اختیاروی . جیرند هغه فعلي نوم دئ چې له فعلي حالته څخه او یاپه بل عبارت له فعله څخه اسمي حالت ته وده او تـکامل کوی (دویبستر قاموس) .

۱٤،۳ــ لنده ئې داچې په پښتو کښې دمصدری نخښې په لحاظ مصدرونه او زډولونه

نه لري بلکه فقط يو دئ .

دپښتوژبې افعال دلزوم اودتعدي دمورفيم له جهته څخه پردووقسمو باندي ويشل کيږي .

دپښتوژبې مصدرونه ټول يوه نخښبه لري چې هغه (ـل) ده . دا کتبر پنزل په خپل (دکـند هاردپښتو گرامر) کښې هم پخوالادغه نتيجه اخستي ده .

دمتداول مصدردغه (ـل) نخښبه چې مصدري علامه بلله شو يده په واقعيت کښې داسي نه بلکه دفعلي جمع مورفيم دئ .

(ـل) دفعلي جمع مورفيم دئ نه‌داسمي جمع . نو کله‌که‌ځيني کلمي چې‌مختومي په (ـل) سره وي اوداسم په توگه استعمال شي فعل اوصفت به ئې هرو‌مرو جمع وي مگرداسميت له پلوه څخه ئې دجمع مورفيم صفردئ .

کله چې‌په ( ـ ل) سره مختومي کلمي نحوي اسمي‌حالت وموميء مگرصرفي اسمي حالت ئې نه وي غوره کړي داسي‌کامي مشتق منه نه وي يعني له دوي‌څخه اشتـقاق نه‌کـيږي بلکه دوي پخپله مشتـقې دي يعني له فعله څخه منځ ته را غلي دي . دغه راز کلموته موږ څه نوم نه لروخو دنوروفعلي نوموسـره ئې دحاصل مصدرپه ډله ورکښې ايستلای شوخو په انـگليسي کښې ئې جيرنډ (Gerund) بولي چې‌کلمه هم پخپله لاتيني ده .

څرنـگه چې مصدريوفعلي نوم پيژندل شوي وواودمصد روالـي نخښبه ئې (ـل) وه مگرزموږددغې څيړنـي اومطالعي په ترڅ‌کښې په خوراښکاره او ثابت ډول سره معلومه شوه چي (ـل) دمصدريت مورفيم نه دئ بلـکه دفعلي جمعو ا لي مورفيم دئ . پس نودپښتومصدري نخښبه‌کومه ده اوپخپله، مصدرڅه رازدئ ؟

# د فعلي نومو د اسمي خصوصياتو
## مقايسه

## ـ ٤ ـ

١،٤ــ په (١٣،٣، او ١٤،٣) کښې مو ز ته دا را څرګنده شوه چې د متداول مصدر هغه نخښه (ـل) چې دی پرې مصدر پيژندل شوی دئ د مصدريت مورفيم نه بلکه د جمع غايب مذکر ضمير دئ دغه په اصلي ډول سره جمعوالی افاده کوی او هغه هم فعلي نه اسمي ـ ځکه چې متداول مصدري شکل و موز ته ديوه محض فعلي نامه په توګه ثابت شو. دغه صرف فعلي اسميت ئې نسبي دئ نه مطلق د دغي ادعا و ثبوت له پاره ئې له نورو فعلي نومو سره چې هغه په پښتو کښې د

(-nə)　(-st)　( -ɒ)　(-ə)

(ـ ه)　(ـ نک)　(ـ نبت)　(ـ نه)

وروستړونی نخښې لري لکه اوريده ، اوريد نګ او رښت او اوريد نه مقايسه کوم . داسې چې دغه شکل ئې په نسبي ډول سره واقعي دئ که جعلي . اسمي جنبه ئې رښتيا هم ترنورو فعلي نومو بشپړه ده که يه . د اسميت ټول ګرامری وجوهات دده د تائيد يا تکذيب له پاره دمعيار او پرتلنې په توګه استخداموم . لکه ترمخه چې ئې چيری يادونه شويده اسمونه د استعمال او شکل له مخې څخه دوه بيل اړخونه لري . دغه دواړه ئې په ترتيب سره په نحو او صرفو پوری اړه مومي . زمونږ پنځګون کانديد فعلي نومونه دمقايسې په توګه د

نحوی اوصرفی اصو او له مخی څخه اتکلوویاازمویو. دنحوی استعمال مواردبه ئې وموزته دارابڼووی چې یوفعلی نوم دکوموحالاتو خاوند دی یعنی فا علـی مفعولی ، اضافی اونورداسی چې وروسته به ولیدل شی . ددغو حالاتولـه مخی څخه یوفعلی نوم په جمله کښې کوم موقعیت اشغالوی اوڅه وظیفه لری . با ید په یادئې ولروچې دفعلی نوموفاعلی ، مفعولی ، اونـوروحالاتـوڅخه پـه نحو ( Syntax ) کښې زموږددغه نامه یوازنی یامحض موقف په کاردئ او دمعانی علم ( Semantics ) یافلسفی منطقوله مخی څخه ئې دفاعلیت یامفعولیت په واقعی مفهوم پسی نه گرځو. مثلاً لمبیدنه سړی تیاروی . په دغه جمله کښې لمبیدنه د دموقعیت په لحاظ فاعلی اوسړی مفعولی حالت لری او تیاروونه ئې فعل دی . د فلسفی منطقو له مخی څخه واقعاً پیښه داسی نه ده چې لمبیدنه د تیارونی فعل پرسړی بانـدی اجراء کوی . پورتنی غوندی مثالونه په ژبه کښې واقعیت اورواج لـری . یعنی وینگ ئې جایزدی اوڅوك ئې پرجوړښت باندی اعتراض نه شی کولای . که ئې څوك ترژبنیو منطقو په هاخوا په فلسفی منطقی شکل پسی گرځی نو بیا عین مطلب په یوبیل نحوی ترتیب سره داسی افاده کیدلای شی . سړی په لمبیدنه سره تیاریږی په دـغه صورت کښې نو لمبیدنـه نور فاعـلی حالت نه لـری بـلـکه د آلی حالت ځای نیسی اوفعل ئې چې په لومړنی مثال کښې متعدی ؤ په دوهم مثـال کښې په لازمی سره اوړی اوله دغه وروستنی څخه په مجهول متعدی سره الیشیږی یادغسی مطلب افاده کوی .

۲،٤ــ دصرفو له مخی څخه زموږ پښځگون کاندید فعلی نومونه څخه دونه متعدد اشکال نه لری بلکه ډیرمحدوددی . دغه هم په جمله کښې خورالږ دموقعیت تابـع دی اوپه عمومی ډول سره د سر بل ( Preposition ) اواوستربـل ( Postposition ) متابعت لری . دغه سربل اواوستربل به پـه مجموعـی یـاتـرکیبی ډول سره (سراوستربل یاسراوستربلونه) بولو. ځکه چې په پښتو کښې بالعموم سربلونـه اواوستربلونه سره لازم اوملزوم دی .

دهرحالت له پاره به لوړی دنوو او رو پنځګونو فعلي نومو نحوی مثا لو نه او وروسته به ئې صرفي شکلونه اوڅیړنه ئې وړاندی کیږی . ددغه کار په تـرسره کولو کښې به ځینی نخښې دفهم دسوو انـی له پاره استعما لوو. (الف اوب) نخښې په ترتیب سره دفعلي نوموډمفرداصلي اومفردمغیره اشکالوښکار ندوی دی . د غه شانـی (ج) او (د) نخښې به بیاددوی اصلي جمع اومغیره جمع شکلونه راښو وی لوړی ستون اعداددحالاتو پر له پسی شمیرڅر ګند وی . خوددوهم ستون عد دونه پنځه دی یعنی دپنځګونو فعلي نوموښکارند و ی دی چـی عبارت له(ـل) (ږ) (ږ) نـګ (ږ) (ښت) او (ـنه) څخه‌دی .

۳،٤ـ فاعلي حالت : Nominative Case

۱ـ۱ـ الف : اوستل معلومات ډیروی .

۲ـ۱ـ د: اوستلومعلومات ډیر کړیدی .

۳ـ۲ـ الف : شرمیده سړی له امتیازاتوڅخه بـی برخي کوی .

٤ـ۲ـ د: شرمیدوسړی په ژوندانه‌کښې له ډیروشیانوڅخه بـی برخي کړیدئ.

۵ـ۳ـ الف : لوستنـګ وخت ښه تیروی .

٦ـ۳ـ ب : لوستنـګی می زړه راتنـګ کړی دئ .

۷ـ۳ دـ: لوستنګووخت ښه تیر کړی دئ .

۸ـ٤ـالف: اورښت کښتونه خړو بوی .

۹ـ٤ ج: اورښتونه مځکی خړو بو ی .

۱۰ـ٤ـد: اورښتو (نو) مځکی خړو بـی کړیدی.

۱۱ـ۵ـالف: اوستنه‌علم روزی.

۱۲ـ۵ـب: لوستنی علم پاللی دی .

۱۳ـ۵ـج: لوستنی اوعلم ته انـکشاف ور کوی.

۱٤ـ۵ـد: لوستنودعلم یوشمیر نمګړتیاوی وربشپړی کړیدی .

دتیولوفعلي نومو له پاره دفاعلي حالت مورفیم په حال زمانه‌کښې صفریا پټ

دئ نوئی ځکه اتکأ پر نحوی موقعیت باندی کیږی چی ترمفعول د مخه یاد جملی په سر کښې راوړه کیږی. له ماضی افعالوسره دغه فعلی نومونه تول په جمع کښې او ځینی په مفرد کښې مغیره شکاونه اخلی. څرنګه چی په /ـل/ مختوم فعلی نوم جمع فعلی شکل لری نوئی مغیره حالت یائی فاعلی ماضی شکل هم دجمع مورفیم لری چی هغه/ـوO او ـ/دی. دوهم فعلی نوم دلومړی فعلی نامه مخفف شکل دئ چی د/ـء/ /یا/ه ه / نخښه لری. دی هم یوازی په ماضی کښې دجمع په مغیره مورفیم سره چی/ ـ وO ـ/دی اوړی دغه /ـ وO ـ / د دمخنی مغیره جمع مو رفیم / وO/ الوموروف دی. هغه فعلی نومونه چی د/ ـښت/ وروستړونئ لـری مفرد مغیره شکلونه نه اخلی هرڅه چی/ ـ نګ/ اوـ نه/ وروستړونی والا فعلی نومونه د ی هغه هم په مفرداوهم په جمع کښې له ماضی افعالوسره مغیره شکلونه اختیاروی. څرنګه چی په /ـ نه / مختومه فعلی نوموکښې دمفرداصلی حالت مو ر فیم ز وره کې /ـء / اودجمعی هغی معروفه/ـ ی 1 ـ / ده چی اساساً دواړه تانیثی افا ده هم لری. دغه داصلی حالت جمع مورفیم چی/ـی 1 /دئ داختصاصی پیژند نی له پاره ئی په عددی نخښه/ی۱ $1_1$ ـ / سره ښیانی کوو. ځکه چی په ماضی کښې دفاعلی حالت مفردمغیره مورفیم هم معروفه /ـی/ ده. ددې له پا ره چی التـباس پیښ نه شی اومغشوش نه شونودغه وروستنی مورفیم په /ـی۲ $1_2$ ـ/ سره ښیانی کوو. ددوی ترمنځ کوم شکلی توپیر نشته هرڅه چی دئ هغه دمفرداوجمع او هم دحال اوماضی نحوی حالاتوتابع دی. دپوهیدنی داسانئ له پاره دټولـو فعلی نـومو اصلی اومغیره نخښی لاندی په مجموعی ډول سره ښوولی کیږی.

| فعلی نومونه مختوم په: | الف: اصلی مفرد | ب: مغیره مفرد | ج ـ اصلی جمع | دـ مغیره جمع |
|---|---|---|---|---|
| ۱ـ /ـ ل/ | — | — | /پ/ | /ـو/ |
| ۲ـ/ـء/ | — | — | /پ/ | /ـو/ |
| ۳ـ/ـنګ/ | /پ/ | /ـی/ | — | /ـو/ |
| ٤ـ /ـښت/ | /پ/ | — | /ـونه/ | /ـو/ |
| ٥ـ /ـنه/ | /پ/ | /ـی۲/ | /ـی۱/ | /ـو/ |

وروستنی نخښنه والافعلی نوم ترنوروسیا لانوئی دفاعلی حالت مکمله سلسله لری اوهم فاعلی حالات لکه څرنگه چی دیوه عادی اسم لـه پـاره لازم وی هغسی جوړوی .

٤٤- مفعولی حالت Accusative case:

١-١- الف - دی ډیر لوستل کوی .

٢-٢- الف- دا ډیر زهیر یده کوی.

٣-٣ الف- دا بل شانی کتنگ کوی.

٤-٤- الف- پردغه ودانی ډیر لگښت کیږی .

٤-٥ -ج- پردغی ما نی ډیر لگښتو نو نه شو یدی .

٦-٥- الف- دی ډیره لوستنه کوی .

٧-٥-ج- ته ډیری لوستنی کوی .

مفعولی حالت په پښتو کښې دهیڅ فعلی نامه له پاره کوم ځانگړی لفظی شکل یا نخښنه نه لری. پیژند نه ئی ډیره په معنوی Semantic معیارا وترښی اندازې ئی په نحوی موقعیت پوری اړه اری. دوروستنی معیارله مخی څخه مفعولی صیغـه باید ترفاعل وروسته اوترفعل دمخه راوړه‌شی. یعنی باید دفاعل او متعدی فعـل ترمنځ وی. که چیری موږدغه نحوی ترتیب وران کوو بیاهم مفعولی صیغـه پـه آسانی سره نه راڅخه‌ورکیږی. ځکه یوخوترڅو چی فاعلی حالت موجـود وی دغه تمیز کیدای شی. دتمیزدوهمه لارئی معنوی ده،اوحتی‌په‌بدیهی توگه پوهیږ و چی مثلا: احمدلیکنه کړیده . که‌موځه هم کښلی‌وی چی: لیکنه احمد کړیده . مگر نه داسی چی: لیکنی احمد کړیدی .

هغه ډله فعلی نومونه چی‌مختوم په/ـه ل/ اودغه په تخفیفی‌زوره کی /ـه/سره وی مفعولی‌صورت‌ئی دجمع غایب فعل شکل اری که ئی‌څه هم فاعلی مفردوی. یعنی مفرد حالت نه لری . د/- نگ/ وروستړونی والافعلی‌نومونه یوازی د مفرد مذکراستعمال په ثابت اوبی تصریفه شکل لری . هغه فعلی‌نومونه چی‌په وروسته

کې ئې /ـ ښت/ راځي په همدغه شکل دمفرد مذکراود/ـونه/ په وروستړوني سره دجمع مذکرپه توگه استعماليږی .هرځه چی/ ـنه / والا فعلی نومونه دی د مفرد اوجمع مفعولی حالاتونه دځپلواصلی شکلو په شانی لری . نتيجه دا چی هيڅ فعلی نوم په مفعولی حالت کی مغيره شکل نه اخلی ،مفرديا جمع .

| فعلی نومونه ختوم په: | الف ـ اصلی مفرد | ب ـ مغير مفرد | ج ـ اصلی جمع | د ـ مغيره جمع |
|---|---|---|---|---|
| ۱ـ /ـ ءل/ | — | — | /پ/ | — |
| ۲ـ /ـ ء/ | — | — | /پ/ | — |
| ۳ـ /ـ نگ/ | /پ/ | — | — | — |
| ٤ـ /ـ ښت/ | /پ/ | — | /ـ ونه/ | — |
| ٥ـ /ـ نه/ | /پ/ | — | /ـ ی/ | — |

يادونه : پرته له پورتنيو فاعلی او مفعولی حالا تو څخه په نورحالاتو کښی فعلی نومونه ازاد لفظی او نحوې حالات نه لرې . بلکه د سراو ستر بلو تابع وې چی غبر گه وظيفه اداء کوې .

٤ـ ٥ـ مفعول اليه حا لت Dative case :

په دغه حالت کښی فعلی نوم مستقيم مفعولی نه وې . دغه پيښه هغه مها ل ښه روښانه کيږې چی فعل ئی لازمی وې . له دغه سببه څخه نوار تباطی حالت هم ورته ويل کيږې . مغيره شکلونه ئی د ( و ـ ته ) دسر اوستر بلو معلول وې .

۱ ـ ۱ ـ د: دنجو نووروزلوته پاملرنه په کارده .

۲ ـ ۲ ـ د : دکوچنيانو غتيدوته لويان انتظار ارې .

۳ ـ ۳ ـ ب: موږدتولنی پو هيدو نـگی ته اړتيا لرو .

٤ ـ ۳ ـ د:د خلـکو وپوهيدونـگوته بايد شرايط برابر کړل شی .

٥ ـ ٤ ـ الف : دوړوښور ښت ته زاړه امنا کوې .

٦ ـ ٤ ـ د :دوړو ښو رښتو ته زاړه گو ته په غا ښ نيسی .

۷ ـ ٥ ـ ب : پرديسی د سلا مو ليږ نی ته لارسموې .

۸ـ۵ـ د:مینان دګـلو ولیز نوتـه غیز غوړوي

هغه دلی فعلی نومونه‌چی په / ـ ءل/ اودهغه په‌مخففه نخښه/ـ ء/ سره مختوم وي مفعولی الیه صورت ئی دمغیره‌جمع شـکل‌اختیاروي .د/ـ نـګ / وروسترونی والا فعلـی‌نومونه بیا یوازې مفرد مغیره شـکلونه اوپه / ـ ښت / سره مختوم ئی اصلی مفرد شکلونه لری . هرڅه چی/ ـ نه / نخښی و الا فعلـی نو مونه دې هغه هم مفردمغیره او هم جمـع مغیره شـکلونه اخلی داسـی :

| فعلی نومونه مختوم په: | مفرد شـکل | | جمع شـکل | |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| | الف ـ اصلی | ب ـ مغیره | ج ـ اصلی | د ـ مغیره |
| ۱ ـ /ـ ءل/ | ـ | ـ | ـ | /ـ و/ |
| ۲ ـ / ء / | ـ | ـ | ـ | /ـو/ |
| | الف ـ اصلی | ب ـ مغیره | ج ـ اصلی | د ـ مغیره |
| ۳ ـ /ـ نګ/ | ـ | /ـ ي/ | ـ | /ـ و/ |
| ٤ ـ /ـ ښت/ | /پ/ | ـ | ـ | /ـ و/ |
| ۵ ـ /ـ نه/ | | /ـي/ | ـ | /ـ و/ |

٤ ،٦ـ مفعول منه حالت ( لهـ څخه Ablative case :

۱ـ۱ـ د ـ دغم له ګلو او څخه‌می کر کـه کیږي.

۲ـ۲ـ د ـ له باتیدو څخه می ښه نه راځی .

۳ـ۳ـ ب ـ مرغی ئی له وږنګی څخه وږ غورله .

٤ـ۳ـ د ـ کورموئی له سو ځنګو څخه وسا تـئ .

۵ ـ ٤ ب ـ ګلبوتیئ له لوینبته څخه لوید لئ دئ .

٦ـ۵ ب ـ له ازموینی څخه نتیجه په لاس راځی .

۷ـ۵ـ د ـ له از موینو څخه علمی حقا یق پیدا کیږي .

فعلی نومو نه چی‌ددغو سراو ستر بلو ترمنځ راشـی ګرده ئی مغیره شـکلو نه غوره کوي .دلوړودووفعلی نوموچی په‌وروسته کښی ئی /ـ ءل/او / زو ره کی

راځي دمفعول منه شکل دمغیره جمع وی . څـکه چی دمفرد اصلی اومغیره شـکلونه نری د ( ـ ښت ) مختومه فعلی نومونه یوازی مفرددمغیره شکل مومی نه جمع . کله چی د / ـ نګ/او/ ـ نه/ وروستړونی والافعلی نومونه د(له ـ څخه) په منځ کښېږزی دواړه هم مفرداوهم جمع مغیره شکلونه اختیاروی. ددوی مجردمثالونه داسی دی:

| فعلی نومونه مختوم په: | الف ـ اصلی | مفردشکل: ب ـ مغیره | جمع شکل: ج ـ اصلی | د ـ مغیره |
|---|---|---|---|---|
| ١ـ /ـ ءل/ | — | — | — | /ـ و/ |
| ٢ـ /ـ ء/ | — | — | — | /ـ و/ |
| ٣ـ /ـ نګ/ | — | /ـ ې/ یا/ ـ ء/ | — | /ـ و/ |
| ٤ ـ /ـ ښت/ | — | /ـ ء/ | — | — |
| ٥ ـ /ـ نه | — | /ـې/ | — | /ـو/ |

٧،٤ـ سببی حالت (له ـ څخه) Causative Case:

١ـ١ـ د ـ دمځکی څرخیدلو څخه شپه اوورځ پیدا کیږي .

٢ـ٢ـ د ـ پولمر باندی د مځکی له ګرځیدو څخه موسمونه په وجود راځی .

٣ـ٣ـ ج دلمر له لویدنـګه څخه رونا ورځ راباندې شپه شـی .

٤ـ٣ـ د ـ له ډیرو خوړ نـګو څخه ئی پرنس درد دئ .

٥ـ ٤ ـ ب ـ ترهر چادښایسته وولهزړ ښته څخه ډیره کو که کیږي .

٦ـ٥ـ ب ـ آسی ئی له تر هیدنی څخه سرو اخستی .

٧ـ٥ـ د ـ څوك ئی له لیدنو څخه خوند اخلی څوک ئی له لرنو څخه .

دغه حالت، هم دمفعول منه په تو ګه د( له ـ څخه) له سراو ستر بـاو څخه پیـدا کیږی . مګرتو پیرئی په دئ کی دی چی سببی حالت عموماً داصلی مفعول لرونـکی وی چی هغه دفعلی نامه دسببی حالت معلول وا قع کـیږی . خو مفعول مـنه دیوه بل اصلی مفعول وجود نه ایجابوی او که چیری ورواچول هم شی هغه به دفعـلی

نامه‌دفعلیت معلول نه وی سر بیره پردغه باندی د(له ـ څخه)سر اوستر بلو نه‌غبرگه وظیفه اداء کوی . ددوی د وظیفوی تو پیر علت‌د جملی دفعل او مفعو لـی منسو باتو له استعماله‌سره دفعلی نومو معنوی‌مطابقت‌دئ. څرنگه‌چی‌سر اوستر بلو نه اوسببی حالت دوار ترمنـځ سره مشترک دي نو ئی‌دفعلی نومو صرفی اشکال سره ورته دی .

٤ ۸ ـ انضمامی حالت (لـه ـ سره ) Commutative Case :

۱ ـ ۱ ـ دـ ژوندون له هوسیدلوسره خوند کوی ، نه له زوکلید لوسره .

۲ ـ۲ ـ د ـ داله ویښید وسره پر هوښ را غلـه .

۳ ـ ۳ ـ ب ـتازی دښکار له نیونکی سره مینه لری، نه ئی له خوړ نکی سره.

٤ ـ ۳ ـ ب ـ داور له بلو نگه سره خطر ملگري وی .

۵ ـ ۳ ـ د ـ د پیالی له ماتونگو سره ئی اوبه توی کړی .

٦ ـ ٤ ـ ب ـ خـونه‌ئی له پوښته سره بشپړه شوه .

۷ ـ ۵ ـ ب ـ دکوچنیانو له روزنی سره یوه تولنه مدنی او اصلاح کیږی .

۸ ـ د ـ د ـ له پوهیدنو سره سم وخلکوته دمسئولیت احساس ورپیدا کیږی .

ددغه حالت سر بل preposition د مفعول منه اوسببی حـالت‌له سر بلوسره یوشانی دی‌مگر اوستر بل postposition ئی‌تو پیر ورسره‌لری .دمعنی‌اوحالت تغییر ئی‌هم‌ددغه اوستر بل‌او هم‌دفعل اوفعلی‌منسو باتو له معنوی مطابقته څخه موجو دیږی.دنوموړی حالت سر اوستر بلو نه چی له (له ـ سره) څخه عبارت دی . تو له فعـلی نوموونه پکښې مغیره شکلو نه غوره کوی لکه په (له ـ څخه ) کښې . لـه لفظی پلوه څخه ددوي شکلو نه اوتصریف سره ورته دي مگر له معنوی پلوه څخه ځله بیل دی .

٤ ۹ ـ آلی حالت ( په ـ سره ) InstrumentalCase :

۱ ـ ۱ ـ د ـ بیهوپه ترتیلوسره نه پرلار کیږی .

۲ ـ ۲ـد ـ زړه په تالیدوسره نه ستړی کیږی .

۳ ـ ۳ ـ الف ـ په ښکنځنگ سره وچاته کوم عضوی ضرر نه رسیږی .

٤ ــ ٣ ــ د ــ په ښکنځنګو سره دانسان شخصیت اوحساسات دردول کیږی .

٥ ــ ٤ ــ ب ــ د کوچینانو په لویښت سره تولنه لړییږی .

٦ ــ ٥ ــ الف ــ په ښوونه سره پوهه نه کمیږی .

٧ ــ ٥ ــ ب ــ دجرم په منني سره مجازات هم ډیریږی اوهم کیږی .

٨ ــ ٥ ــ د ــ په ښوونوسره پوهه پخیږی .

په دغه حالت کښې بیا اوستریل دانضمامی حالت له اوستر یله سره یوشانــی دی مګرسربل ئی توپیرځنی لری . دواړه په ګډه د (په ــ سره ) سراو ستربلونه دی چی ځینی فعلی نـومونه پکښې مغیره شکلونه اخلی اوځینی ئـی پـر ځپل اصلی حالت پاتیږی . دمعنی اوتصریف توپیرئی دسربل اونورو افعالو اوفعلی منسوباتو تابع دی .

هغه فعلی نومونه چی په/ــ ءل/او/ــء/زوره کی سره مختوم وی‌دنوروحالاتو په څیرئی دجمع‌مغیره شکل غوره کوی . مګر/ــ نګ/سرتړونی والا فعلی نومونه هم اصلی مفرد اوهم مغیره مفرد شکل اخستلای شی یعنی‌دواړه ئی‌بی توپیره دی خوډیرددغی ډلی په فعلی نوموپوری اړه لری . د جمع صورت ئی یـوازی مغیره شکل اختیاروی . هغه فعلی نومونـه چی په وروسته کی ئی /ــ ښت/ وی یـوازی اصلی مفرد شکل اخلی هرڅه چی /ــنـه/وروستړونی.والا فعلی نومونه دی ، هغه اصلی مفرد اومغیره مفرد شکلونه بی توپیره غوره کوی بیله دې څخه چی‌معنوی اغیزه دی وښندی . مګــردجمع له پاـره اصلی شکل نـه بلکه یوازی ئـی مغیره شکل منی .

مفــــــرد جمــــــع

فعلی نومونه‌مختوم په : الف‌اصلی‌شکل ب ــ مغیره‌شکل ج ــ اصلی‌شکل دمغیره شکل

١ ــ / ــ ءل/ ــ ــ ــ ( ــ و)

٢ ــ /ــ ءل/ ــ ــ ــ ( ــ و)

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۳ — /ـنګ/ | پ | یا /ـي/ | — | /ـو/ |
| ٤ — /ـښت/ | پ | — | — | — |
| ٥ — /ـنه/ | پ | یا /ـی/ | — | /ـو/ |

٤ ، ١٠ — مکانی حالت (په — کښې) Inessive case

١ — ١ — د — داپه مسیدلو کښې بیل نزاکت لری .

٢ — ٢ — د — ته په لمبیدو کښې ستړی شوی .

٣ — ٣ — د — مینه موپه پټونګو کښې رسواشوه .

٤ — ٤ — الف — دی دغم په زغمښت کښې تکړه دی :

٥ — ٥ — الف — داد کالوپه اغوستنه کښې دبیل ذوق خاونده ده .

٦ — ٥ — ج — دی دشیانو په ساتنو کښې ترتحویلدارلاتینګ دی .

ددغه اودآلی حالت سربلونه هم سره ورته دی مګراوستربلونه ئی توپیرسره لری . کوم معنوی اووظیفوی فرق چې د دوی ترمنځ شته هغه ئې واو ستربلوته راجع کیدای شی .

د /ـءل/ او/ـء/ والافعلی نومونه دپخواپه شانی جمع مغیره شکل اخلی . خوهغه فعلی نومونه چی په پای کښې ئی /ـنګ/ او/ښـت/ راغلی وی یوازی اصلی مفرد شکلونه اختیاروی . مګر /ـنه/ ورستړونی والافعلی نومونـه چی د (په — کښې) ترمنځ راشی داصلی مفرد اومغیره جمع شکلونه غوره کوی چی په لاندی ډول سره ښوول کیږی :

فعلی نومونه مختوم په : الف — اصلی مفرد ب — مغییره مفرد ج — اصلی جمع د — مغیره جمع

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ١ — /ـءل/ | — | — | — | /ـو/ |
| ٢ — /ـء/ | — | — | — | /ـو/ |
| ٣ — /ـنګ/ | /پ/ | — | — | /ـ/ |
| ٤ — /ـښت/ | /پ/ | — | — | — |

| ٥ ـ | / ـ نه / | /پ / | ـ | ـ | / ـ و / |
|---|---|---|---|---|---|

٤ـ١١ـ نسبي يامقايسوي حالت (تر ـ) Ccmparative Case :

١ـ١ـ د ـ ترخوړلو ئي اميدښه دی .

٢ـ٢ـ د ـ دی يوازی ددنياپه ډيريدوپسی دی .

٣ـ٣ـ الف ـ ترپاتيدنګک ئي تلنګک په ګټه بولم .

٤ـ٣ـ د ـ ددنيا ترلرنګوخوښ اوارام ژوند ښه دی .

٥ـ٤ـ الف ـ چاغښت ترزړښت غوره دی .

٦ـ٥ـ ب ـ ترباز نی ئي ساتنه ګټوره ده .

٧ـ٥ـ د ـ ترباز نودی ئي ساتنی په درد خوری .

په دغه حالت کښې يوازی سرېل وظيفه ادأكوی يعنی اوستربل نه لری . ښايی په ځينو نوروحالاتو کښې به يوله دوا ړوځخه وی ، مګردغه به ئي يولهجوی تغيير وی نه اصلی ،لکه دنسبي او اضافی حالاتوهغی .چپله‌وروستنيويادوسوحالاتو ځخه چی ادوات ئي يوستوی دی ، نوردتهولوحالاتوهغی غبرګک دی .

دلومړنيودووفعلی نوموشکلونه تر(تر ـ) وروسته دپخوا په شانی مغيره جمع دی ، دريم فعلی نوم چی په وروستهٔ کی ئي / ـ نګک / راځی اصلی مفرد اومغيره شکلونه غوره کوی . ځلورم فعلی نوم يوازی اصلی مفر د شکل لری . ځوهرځه چی پنځم فعلی نوم دی ، داصلی مفرد اوجمع مغير شکلونه اختيـاروی چـــی ځرګندونه ئي داسی ده :

| فعلي نومونه‌مختوم‌په : | الف ـ اصلي مفرد | ب ـ مغيره مفرد | ج ـ اصلي جمع | د ـ مغيره جمع |
|---|---|---|---|---|
| ١ـ | / ـ ء ل / | ـ | ـ | ـ | / ـ و / |
| ٢ـ | / ـ ء / | ـ | ـ | ـ | / ـ و / |
| ٣ـ | / ـ نګک / | /پ / | ـ | ـ | / ـ و / |
| ٤ـ | / ـ ښت / | /پ / | ـ | ـ | / ـ / |
| ٥ـ | / ـ نه / | ـ | /ـي / | ـ | / ـ و / |

٤، ١٢ـ اتصالي حالت (تر ـ پوری) Allative Case :

١ـ١ـ د ـ دښایست ژوند ترزړیدلو پوری دی .

٢ـ١ـ د ـ دځینو کسانو ملګر تیاتر کار چلیدو پوری وی .

٣ـ٣ ب ـ ته تر بیدیدنګه پوری ګرېدی .

٤ـ٣ـ د ـ دی ترویښیدنګو پوری غونځیدی .

٥ـ٤ب ـ زړور تیادخطر تر ډیر ښته پوری ده.

٦ـ٥ـ ب ـ دکاریزی او بو ډیروالی دکاریز تر کنید نی پوری وی .

٧ـ٥ـ٥ په‌مرغانو کی مور والی اوپلاروالی دچیچانو ترالووزونو پوری دی .

ددغه حالت سر بل دنسبی حالت په شانی ( تر ـ ) دی مګر پر دغه سر بیــره د (ـ پوری ) استر بل هم لری . ټول فعلی نومونه چی ددوی په غیږ ورځی مغیــره شکلونه اخلی . په‌نسبی‌حالت کی‌چی‌یوازی‌سربل‌ورسره‌راتلی‌ټولوئی‌مغیره‌شکلونه نه‌اخستل‌دغه لفظی اومعنوی تغییر داتصالی حالت د اوستربل تابع بلل کیدای شی :

لومړی اودوهم ډول فعلی‌نومونه خپله هغه‌پخوانی‌جمع مغیره بنیه‌لری . دریم فعلی نوم مغیره مفرد اومغیره جمع شکلونه اخلی . څلورم فعلی نوم یوا زی مغیره شکل غوره کوی . وروستنی فعلی نوم مفرد مغیره اوجمع مغیـــره وی . ددوی تجریدی بنیه په لاندی ډول ده :

| فعلی نومونه‌مختوم‌په: | الف ـ اصلی مفرد | ب مغیره‌مفرد | ج ـ اصلی‌جمع | د ـ مغیره‌جمع |
|---|---|---|---|---|
| ١ـ | / ـ ء ل/ | - | - | / ـ و/ |
| ٢ـ | / ـ ء / | - | - | / ـ و/ |
| ٣ـ | / ـ نګ / | - | / ـ ء/ | / ـ و/ |
| ٤ـ | / ـ ښت / | - | / ـ ء/ | / ـ و/ |
| ٥ـ | / ـ نه / | - | / ـ ي/ | / ـ و/ |

٤ـ١٣ ـ الحاقیه حالت (په ـ پوری) Cohessive Case :

١ـ١ـ د ـ ددغی جامعی رشد په‌پوهیدلو پوری مربوط دی.

۲-۲- د - دژوند سمون په خوځیدوپوری تړلی دی .

۳-۳- د - ددی تګ دده پرپښوونګوپوری اړه لری .

٤-٤- الف - انسان خپل په جوړښت پوری حیران دئ .

٥-٥- الف - ښایست ئی څه خودیرئی په پسولونه پوری زړونه شکیل کړیدی.

٦-٥- ب - زمادزړه مراندی دښایست په نمانځنی پوری نجتی دی .

۷-٥- د - ده ستاپه بخښښنو پوری لاس نیو لی دی .

ددغه حالت اوداتصالی حالت اوستړپلو نه سره مشترك مګرسر بلو نه ئی ځله بیل دی.

سر بیره پردی چی سر اوستر بلو نه دفعلی نومو پرصرفی تشکل اغیزه ښندی له افعالو اودهغوله منسوباتو (قیودو) سره ئی هم نحوی رابطه قایموی . یعنی فعلی نـوم لکه په فاعلی اومفعولی حالاتو کښې مګرپه غیرمستقیم ډول سره ترنحوی مطابقت هم لاندی وی . ددوی دارتباط ساحه کله وسیع او کله محدوده وی . فعلی نومونه چی دالحاقیه حالت په (په - پوری) سراوستربلو کښې ولویزی نوله ډیرولـړو افعالوسره ارتباط نیسی یعنی د استعمال ساحه ئی په دغه حالت کوچنی کیږی .

د /- ء ل/ او /- ء/ ورستړنو والا فعلی نوموهغه مکرر جمع مغیره شکل دی . او په تولوسر اوستر بلیزوحالاتو کښې خپل اصلی شکل هیڅ نه سی ساتلای . د/ -نګ/ نخښبه والا فعلی نومونه هم په دغه حالت کښې یوازی جمع مغیره شکل لری مګرد /- ښت/ نخښبه والا بیا یوا زی خپل اصلی مفرد شکل خوندی کوی . هرڅه چی /- نه / وروستړونی والا فعلی نومونه دی هغه هم اصلی مفرد، مغیره مفرد اوهم مغیره جمع شکلونه اخلی . ددوی تجرید شوی اشکال داسی دی :

| فعلی نومونه مختوم په: | الف اصلی مفرد | ب-مغیره مفرد | ج-اصلی جمع | د-مغیره جمع |
|---|---|---|---|---|
| ١- /-ء ل/ | - | - | - | /-و/ |
| ٢- /-ء / | - | - | - | /-و/ |
| ٣-/- نګ/ | - | - | - | /-و/ |
| ٤- /-ښت/ | /پ/ | - | - | - |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ٥- /ـ نه / | /ـه/ | /ـ ی/ | - | /ـ و/ |

۱۴،۴- استیلائی حالت (تر- لاندی) - Adessive Case :

۱-۱- د - غل تر وهلو لاندی بې هوښه شو .

۲-۲- د - دنازو کړی کالی تر رغیدو لاندی دی .

۳-۳-ب - اوړه ترخښنګی لاندی سر که شول .

٤-۳- د - اور ترپو کونګولاندی مړشو .

٥-٤- الف - خسیل تر اوربښت لاندی چپه شول .

٦-٤- د - ترازمیښتولاندی‌مه راسې!

۷-٥- ب - ستا کتاب می تر لوستنی لاندی دئ.

۸-٥ -د - هلك ئی ترازموینولاندی نیولی دئ .

ددغه حالت سربل داتصالی اونسبی حالت په توګه دئ. مګراستربل ئی توپیر لری. فعلی نومونه چی داستلائی حالت دسراوستربلو (تر-لاندی) په‌منځ ور کښیوزی پهلاندی ډول سره متاثر کیږی. لومړی دوه فعلی نومونه خپل وړاندنی معیره جمع شکل‌ساتی. ورپسی ئی مغیره مفرد شکل‌اخلی. تردغه وروسته فعلی نوم پرخپل‌اصلی مفرد حالت باندی پاتیږی. اخری/- نه/ نخښه والافعلی نومونه مفردمغیره اوجمع مغیره شکلونه جوړوی چی مجرداړخ ئی داسی دئ :

| فعلی نومونه‌مختوم‌په: | الف-اصلی‌مفرد | ب-مغیره‌مفرد | ج-اصلی‌جمع | د-مغیره‌جمع |
|---|---|---|---|---|
| ۱- /ـ ء ل/ | - | - | - | /ـ و/ |
| ۲- /ـ ء / | - | - | - | /ـ و/ |
| ۳- /ـ نګ/ | - | /ـ ي/ | - | /ـ و/ |
| ٤- /ـ ښت/ | /پ/ | - | - | /ـ و/ |
| ٥- /ـ ه/ | - | /ـ ي/ | - | /ـ و/ |

۱۵،٤- استعلائی حالت (پر- باندی) Dominative Case:

۱-۱- د - ده ئی پرخوړلو باندی ځان راورساوه.

۲-۲- د - دی ټی پر تمامیدو باندی خوابدی شو .

۳-۳- ب - دائی دمحبت پر ننګی باندی پښیمانه ده .

٤-۳-د-هغه تولنه به هم ویاړی چی تاریخ ئی پر جنګیدنګو اوو ژنګو باندی بناوی.

٥-٤-الف-په خواره جامعه کښی ډیرعوامل شته چه دعمر پرکمښت باندی اغیزه کوی.

٦-٥- الف - ده دملګرو پر ننګو نه باندی ننګ کاوه .

۷-٥ - ب- څوك دشخصیت پر پالنی باندی درانه تاوانو نه منی .

۸-٥- د - دشخصیت جوړښت دکورنی پر روزنو باندیولاړدئ .

په استلائی حالت کښې د (پر-باندی) سر او ستر بلو نه دفعلی نومو شکلو نه په داسی ډول تیاکی چی په /-ء ل/ او /-ء/ مختومه فعلی نوموخپل جمع مغیره شکل دپخوا په څیر ئی مغیره ساتی. د /.نګ/ وروستړونی والافعلی نوم مغیره مفرداو مغیره جمع شکلونه اخلی. هغه فعلی نومونه چی په وروسته کښې د/ښت/نخښه لری خپل اصلی مفردشکل نه بایلی او د/- نه/ ورستړونی والافعلی نومونه هم داصلی مفرداو هم دمغیره مفرده شکلونه اوهم دغه راز دجمع مغیره شکل اخستلای شی. تجریدی بڼه ئی داسی ده :

| فعلی نومونه مختوم په: | الف-اصلی مفرد | ب-مغیره مفرد | ج-اصلی جمع | د-مغیره جمع |
|---|---|---|---|---|
| ۱- /-ء ل/ | - | - | - | /-و/ |
| ۲- /-ء / | - | - | - | /-و/ |
| ۳- /-نګ/ | - | /-ی/ | - | /-و/ |
| ٤- /-ښت/ | /پ/ | - | - | - |
| ٥- /-نه/ | /ـه / | هم /-ی/ | - | /-و/ |

٤،١٦- اضافی حالت (د -) Genetive Case:

۱- فعلی نوم د مضاف په توګه (ز -؛-؛ ی - و) :

۱-۱- الف - ستا پوښتل ښه مؤدبانه وه .

۲-۲- د - پوښتلودی خوند راکی .

۳-۲- الف - ددې ژړیده درمان دي.

۴-۲- د - ژ ړیدودي ارمان راته ودراوه .

۵-۳- الف - دآغلو لیدنګ راته کیمیا ېړتی دئ .

۶-۳- د - ستالیدو نکومی سترګی را رونی کړی:

۷-۴- الف - دغمجنی دمړښت پیمانه کوچینی اودخوښی دائی لویه ده .

۸-۴-ج- ترهرڅه ئی سپار ښتونه ډیردی .

۹-۴- د - سپارښتودی ملګری له شناخته بیزاره کړیدی .

۱۰-۵- الف - دعلم خپرونه دعالم وجدانی وظیفهده .

۱۱-۵-ج- دبیدو ښکلولیدنی له بله رازه کیفه ډکی وی .

۱۲-۵- د - دچاؤ چالیکنو پرتولنی باندی اغیزی ښندلی دی .

په دغه حالت کښی هم د مقایسوی حالت په شانی یوازی سر بل preposition وظیفه اداء کوی او اوستربل له لویه سره څخه هیڅ نه لری . کله چی فعلی نومونه د مضاف په توګه واقع کیږی نو د اضافت عناصر ئی له ضمایروسره دوه رازه وی یوئی اصلی او بل ئی مغیره . اصلی عناصر یا داضافت مورفیمونه د ضمایـــرو د سر ترونو په توګه اومغیره عناصر ئی د ضمایرو دوروسترونو په توګه وی. یعنی دوی هم یو متناضر Structure Parallel Paradigmic ساختمان لری چی ښوودنه ئی بی ګتی نه ده .

| سرتـــرونــی اضافـی مور فیم | وروسترونی اضافی مورفیمونه |
|---|---|
| / ز-/:(زما) ،(زموږ) | /-ي/،/-و/: (می) ،(مو) |
| / س -/ستا / ،(ستاسی) | /-ي/،/-و/:(دي)،(مو) |
| /د-/:(ده)،(ددې)،(ددوي) | / - ي/ : (ئی) . |

اصلامرږ په پورتنی ساختمان کې دری اضافی مورفیمونه لرو او نور ئی الومورفونه دی . داسی چی د / ز- س - د/ سرترونی دری سره دیوه مورفیم الومورفونه دی . د/ - ي/ وروسترونی مفرد مغیره اضافی مورفیم اود/-و/ وروسترونی جمع مغیره اضافی مورفیم دی .

فعلی نومونه چی د مضاف په توګه واقع شی صرفی شکلونه ئی له دمخنیو ترلو

حالاتو سره توپیرلري . عمده اختلاف ئې دا دی چې پنځه سره دلی فعلي نومونه خپل اصلي مفرد حالت خوندي کوي . سربیره پردغه باندی لومړی اودوهمه دله فعلي نومونه مغیره جمع شکلونه لري . دریمه دله فعلي نومونه بیا سربیره پرخپل اصلي مفرد شکل باندی د مفردجمع شکل اخلي. څلورمه اوپنځمه دله فعلي نومونه اصلي مفرد او اصلي جمع شکلونه اوهم دغه راز مغیره جمع شکلونه اخلي . ددوی د مجردو شکلومثالونه داسی دی :

| فعلي نومونه مختوم په | الف ـ اصلي مفرد | ب مغیره مفرد | ج ـ اصلي جمع | د ـ مغیره جمع |
|---|---|---|---|---|
| ۱ـ /ـءل/ | /پ/ | ـ | ـ | /ـ و/ |
| ۲ـ / ـ ء / | /پ/ | ـ | ـ | /ـو/ |
| ۳ـ /ـنګ/ | /پ/ | ـ | ـ | /ـو/ |
| ٤ـ /ـ ښت/ | /پ/ | ـ | /ـونه/ | /ـو/ |
| ٥ـ /ـ نه/ | /ـه/ | ـ | /ـ ي/ | /ـو/ |

۲ـ فعلي نومونه د مضاف الیه په توګه (د ـ) :

۱ـ۱ـ د ـ دلوستلوسیستم په مطالعه کښی لخوراضروري دی .

۲ـ۲ـ د ـ که پرآس باندی د سپریدوچم دچانه وي زده ،نوسپراوبایلی .

۳ـ۳ـ ب ـ نور د افسانوی نړی د مننګی کا بونه دی پاته .

٤ـ۳ـ د ـ واقعیت دفکر پرشاؤخـوا باندی دترنګـوخرافی ځنځیرونه ماتوی

٥ ـ ٤ ـ الف ـ دستاینښت پرځای برابراستعمال څوګرایه اغیزه ښندی .

٦ـ٤ـ د ـ داورښتوله برکته څخه سړ کال آباددی .

۷ـ ٥ ـ ب ـ طبیعت دنمانځنی مقام نه غواړی .

۸ـ ٥ ـ د ـ یوازی انسان د نمانځولاړی پرانیزی .

فعلي نومونه چې مضاف الیه واقع شی نول د مغیره جمع شکلونه د پخوانیو حالاتو په شاني اخستلای شی . سربیره پردغو باندی/ـ نګ/ او/ ـ نه/ دلی فعلي نومونه مغیره مفرد او /ـ ښت/ دله فعلي نومونه اصلي مفرد شکلونه غوره کوی :

ددوی مقايسه له هغو اشکالو سره چې فعلي نومونه ئې مضاف واقع شوی وی له دغو لاندنيو موجودو مثالو څخه ښه ترا کيدلای شي .

| فعلي نومونه مختوم په: | الف- اصلي مفرد | ب- مغيره مفرد | ج- اصلي جمع | د- مغيره جمع |
|---|---|---|---|---|
| ۱- /- ال/ | - | - | - | /-و/ |
| ۲- /-ه/ | - | - | - | /-و/ |
| ۳- /-نګ/ | - | /-ي/ | - | /-و/ |
| ٤- /-ښت/ | /پ/ | /-/ | - | /-و/ |
| ٥- /-نه/ | - | /-ي/ | - | /-و/ |

يادونــه: په تېرو لوسراوستر بليزو حالاتو کښې دفعلي نومو دمغيره جمع شکلو /ــ و/ مورفيم دوه صورته لری. يوئې دمجهول /ــ و o ــ/ او بل ئې دمعروف /ــ و u ــ/ دئ. دغه يو صرف صوتــي تغيير دئ چې دسيلا بو تر منځ دخج له اوښتنې څخه پيدا کيږی . که خــج پر ورو ستنی سيلا به يعنې د جمــع پر مغير ه مورفيم بــاندی ؤ له دغه څخه يو اوږ دمجهول /ــ و o ــ/ جوړ وی. که خــج پر ما قبل الاخر سيلا به باندی وي نود جمع لهمغيره مورفيم څخه لنډ معروف /ــ و u ــ/ جوړوی . دغه دواړه شکلونه يو د بل الومورفونه دی .

٤، ١٧ ــ په د مخنيو پنځلسو حالاتو کښې (ومضاف اومضاف اليـه په شمول) مو دفعلي نومو اشکال وليدل. دوی دحالت لهمخی څخه دوه اړخونه لری. يوئې آزاد اړخ دئ چې فاعلي ارمفعولی حالات پکښې شامليږی. که څه هم فعلي نوم پهمفعولی حالت کښې کوم داسی شکل نه غوره کوی چې موږ دی ئې دهغــه له مخې څخه مغوليت وپيژندلای سو. مگر په واقعيت کښې ئې دغــه داصلي حالت ساتنه ترډيری اندازی پوری دی له نورو څخه متمايــز کوی . بل داچې دغه حالت نحوی ترتيب او لهمعنوی اړخه څخه اوهم داچې فاعلي صيغه دفاعليت دنخښې لرونکې وی، نومفعولی صيغه دمفعوليت له نخښې څخه مستغنی کيږی . دغه معنې داچې موږ دوه داسې فعلي اسمي حالتونه په پښتو کې لرو چې هغه ترخارجې لفظي عواملو لاندی نه دی راغلي .

دحالت دوهم اړخ دادئ چی ترخارجی لفظی عواملولاندی ومنځ ته راغلی وی . دغه خارجی لفظی عوامل عبارت له سراوستربلو Pre - Postposition څخه دی چی ترفعلی نوموورڅاندی اووروسته راځی که چیری دغه سربلونه Prepositions او اوستربلونه Postpositions دستر تـــرونو Prefixes اووروستړونو Suffixes په شانـــی دفعلی نرمود صیغی برخه وګرځی یعنی تبنګ پوری وموښلی نوبه دغه حالات هم دلو مړنیو حالاتو په څیروی . ځکه چی سراو ستربلونه ئی نورخارجی لفظی عوامل نه شمیرل کیږی بـکه دسروروستړونوغوندی به دصیغو اجرأجوړو ی .مګراوس چی واقعیت دغسی نه دئ ، نوموږلومړنی عمده حـالات او وروستنی ( راوستریلز ) فرعی حالات بولو ددوی ترمنځ یو بل تو پیرداسی دئ چی Pre - Postpositional Cases په فاعلی حالت کښی اصلی جمع او مغیره جمع شکلونه تناظر ی ساختمان لری مګر په سراوستربلیزوحالاتو کښی اصلی جمع شکلونه پرته له مضاف څخه نور هیـڅ موجودنه دی . یعنی چپله مضاف واقع کیدلو څخه نورتړوله فعلی نومونه یوازی مغیره جمع شکلونه اخلی. له دغه اونورومقـایسوی توپیره څخه چی دجدولـی مثالو په مقایسه کښـی لیدل کیدای شی ، وموږته ددوی دحالت دمړر فیموترمنـځ دیوه بل تو پیرڅرك په لاس راتلای شي . هغه دادئ چی د عمده یانحوی حالت مورفیم مثـلادمغیره جمع شکل /ــ و/ دفرعی یاسرا وستربلیز حالت دمغیره جمع مورفیم /ــ و/ سره یوشانی نه دئ. یعنی دوی دوه که څه هم دنحښی، دفو نیتیکی اوموفوفـو نیموالی له خواوڅخه سره ورته دی مګربیاهم دواړه نه یومور فیم دئ ، اونه دیوه مورفیم الومورفونه دی بلـکه دواړه بیل بیل مورفیمونه شمیر ل کیږی. نورشکلونه ئی چی د /ــ ی ۱ / اوــ /ـ ی ۲/ اوداسوپه څیرد ی هــم خپلی آزادئ ساتی. دمثال په توګه داضافی حالت دفعلی نوموورفیمونه چی مضاف الیه واقع شویدی دفاعلی حالت له مورفیمو سره چی فعلی نومونه پکښی مضاف واقع شویدی دده څنیوجدولو له مخی څخه مقایسه کړئ . ددوی دوروستړونو نحښو

تو پیر له نحوی او صرفی مناسبته څخه پهلاس راځی چې دهغو له مخی څخه شکلی مشابهت موجود دئ مگر مورفیمی تشابه نه سره لری. دغه معنی داچې دعمده یا نحوی حالاتو ورفیمونــه مثلا د اصلــی جمــع له پاره /ــ ی i ـ/ د مغیره جمــع له پاره /ــ و o ـ/ اودمغیره مفرد له پاره / ی ۲ $i_2$ ـ/ نخښی تاکو. مگر د فــرعی یا سراوستربلیزوحالاتودمغیره مفردله پاره /ــ ی۳ $i_3$ ـ/ اود مغیره جمع له پاره /ــ و۲ $o_2$ ـ / نخښی ایزدو. ددغه د نخښو تو پیرد مورفیمو بیلوالی افاده کوی دذکر شووفرعی حالاتو د روستړونی بهعر یود هر حالت له پاره بیل مورفیم وای یعنی دمغیره جمع مورفیمونه بهدمثال په توگه د / وا = و۲ ــ و۰۰۰۰ / یوه سلسله وای. دغه پیښه بههغه مهال ممکنه وای که فعلی نومونه دسراوستربلوتا بــع نهگرځیدای او یادوی پخپله موجود وای خودغه سر اوستر بلونه ئی نه لرلای. څرنگه چې اوس له فعلی نوموسره سراوستربلونه راځی نود/ و o ـ/ مغیره جمع اودنورومورفیمو پرځای باندی پخپله دغــه سراوستربلــونه دمورفیموالی حیثیت مومی اودوی ئی توابع دی ځکه چې یوخودغه وروستړونی مورفوفونیمونه بیله سراوستر بلوڅخه ومنځ ته نه شی راتلای، اوبل د دوی موجودیت پرته له سر او ستربو څخه هیڅ راز حالت نه ښووی نوطبعا مورفیموالی ئی مستقل نه دئ بلکه تابع دئ. مطلب داچې سراوستربلونه دنوموړوفرعی حالاتومورفیمونه اودفعلی نوموموړفوفــونیمیك Morphophonemic وروستړونی ئی توابع دی.

۴، ۱۸ـ ددغی موضوع چــی موږ ئی په پلټنه اوڅیړنه بوخت یو اصلی تکی د فعلی نومو له جملی څخه په مقایسوی توگه دمصدرتاکنه اوراایستنه ده. دفعلی نومو هغه مصدری اړخ چــی په(۴،۴ او۴،۵) کښی وڅیړل شوعبارت له اسمی خصوصیاتو څخه ؤیعنی موږهغه کوله څوپوهیږوچــی کم فعلی نومونه نسبت ونوروته په اسمی خصوصیاتوښه مجهزدی. له دمخنی څیړنی څخه دغه موضوع په لنډه اومقایسوی توگه سره لاندی وړاندی کیږی:

| فعلی نومونه | /- ه ل/ | /- ه/ | /- نگ/ | /- بت/ | /- نه/ | جمله خصوصیات |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فاعلی حالت | ج - د | ج - د | الف - ب - د | الف - ج - د | الف - ب - ج - د | ۱۴ |
| مفعولي حالت | ج | ج | الف | الف - ج | الف - ج | ۷ |
| مفعول اليه (و - ته) | د | د | ب - د | الف - د | ب - د | ۸ |
| مفعول منه (له - څخه) | د | د | ب - د | ب | ب - د | ۷ |
| سببی حالت (له - څخه) | د | د | ب - د | ب | ب - د | ۷ |
| انضمانی حالت (له - سره) | د | د | ب - د | ب | ب - د | ۷ |
| الی حالت (په - سره) | د | د | الف یا ب - د | الف | الف یا ب - د | ۷ |
| مکانی حالت (په - کښی) | د | د | الف | الف | الف - د | ۶ |
| نسبی حالت (تر-) | د | د | الف - د | الف | ب - د | ۷ |
| اتصالی حالت (تر - پوری) | د | د | ب - د | ب | ب - د | ۷ |
| الحاقیه حالت (په - پوری) | د | د | د | الف | الف - ب - د | ۷ |
| استیلائی حالت (تر - لاندی) | د | د | ب - د | الف - د | ب - د | ۸ |
| استعلائی حالت (پر - باندی) | د | د | ب - د | الف | الف - ب - د | ۸ |
| اضافی حالت (مضاف اليه) | د | د | ب - د | الف - د | ب - د | ۸ |
| اضافی حالت (مضاف) | الف - د | الف - د | الف - ج - د | الف - ج - د | الف - ج - د | ۱۲ |
| ټول خصوصیتونه | ۱۷ | ۱۷ | ۲۸ | ۲۳ | ۳۵ | ۱۲۰ |
| په سل کښی | ۱۴،۱۷ | ۱۴،۱۷ | ۲۳،۳۳ | ۱۹،۱۶ | ۲۹،۱۷ | ۱۰۰ |

له پورتني مقایسی او پر تللني څخه چې دفعلي نوموا سمي خواص پکښې ترمطا لعې لاندې وه ، لومړی د / ــ ء ل / او / ــ ء / وروستړونووا لافعلي نومو دخواصو مشا بهت څرګندیږی ، یعنی سره مشترك اووروستني دلــومــړی مخفف صورت دئ . دوهم ددغوا سمي خصوصیاتوله مخې څخه / ــ نه / وروستړونــی والافعلي نومونه ترمتداول مصدر یعنی / ــ ء ل / والافعلي نوموډیرمجهزدی . د/ ــ نــه / مورفیم والافعلي نومواسمي خصوصیات نسبت و / ــ ء ل / مورفیموا لا ته پوره دوه ګرایه دی . ددریم چپتر له مخې څخه داعجیبه نده چې دمتداول مصدراسمي خواص ترنوروتیوا وفعلي نوموازدی .څکه چې هورې دی مو زته د یوه محض فعل یامحض اسم په توګه ثابت شو .

# دمصدر پلټنه

۱،۵ــ دمصدر پیژندنی له پاره په هره ژبه کښې ځینې ممیزه لارې او شرایط شته چې موږ باید دهغو له مخې څخه په پښتو کښې هم مصدرو پیژنـواو تعیین ئـې کو. ددغولارو اوشرایطو له جملې څخه ئې زموږدګرامریانو په لومړۍ تعریفې څېړنه کښې یوې اوبلې ته اشاره کړیده چې دلې به دځونورو په زیادوالي سره ذکرشي څودهغو په مرسته سره وکولای شو پرهغوصیغوباندې چې دمصدروالي له پاره کاندید دي قضاوت وکو .

۲،۵ــ دفعلي مادې لرنه .

۳،۵ــ دتیاکلي مصدرې نخښې لرنه .

٤،۵ــ داسمي خصوصیتو لرنه (۵،۵)

٦،۵ــ جامد اومشتق منه به وي (۷،۵) .

۸،۵ ــ باید هرمصدردځپلومشتقاتوشامل اومشمول وي .

۹،۵ــ تولې فعلي صرفي او اشتقاقي سلسلې باید هره یوه ځپل مصدر رولرې .

۱۰،۵ــ دهرې ژبې مصدر باید دهغې کورنۍژبو له مصدروسره تـرممکنې اندازې پورې مقایسوې اوحتی که کیدای شو ای تاریخي رابطه څرګنده کړي .

پورتني واړه مشخصات په لاندې دول یوپه بل پسې ترڅېړ نې لاندې نیـول کیږي اونتیجه ئې په ځپل رون سره څرګندیږي .

۲،۵ــ په پښتو کښې چې هرڅه فعلي نومونه شته هغه زموږ ګرامریانو حاصل

مصدر بللی دی . ترحاصل مصدر ثې ښه کړه نوم پخپله دغه فعلی اسم یا فعلی نوم دئ . ځکه چی دمتداول گرامر له مخی څخه هرفعل اوهرفعلی صفت هم حاصل مصدر دئ . داچی دفعل پرحدوث دلالت اودفعلی مادی لرنه دتولو فعلی نومو یا حاصل مصدرو ترمنځ یوه مشترکه ممیزه ده ځکه نوموږ مصدر ددغــه خصوصیت له مخی څخه تشخیص اوتاکلای نه شو. دپښتو فعلی نومونه دمثال په ډول داپسی پنځگون شکلونه لري : لـگیدل ، لـگیده، لـگیدنـګ ، لـګښت اولـگید نه .

فعلی ماده دمصدروهغه برخه ده چی پرته له تصریفی اواشتقاقی تړونو څخه دتړلی یا ازاده ورفیم په توگه پاتیږي . ودغی برخی ته دژبوپوهــنی پــه اوسنی اصطلاح ـ که بسیطه وي ریښه ( Root ) اوکه مرکبه وي تنه ( Stem ) ویل کیږي. له معنوي پلوه څخه ددغی اساسی برخی اوددې دلوازمو اطلاق د فعل پر حدوث باندی دئ .

۳،۵ــ زه نه پوهیږم چی مصدر باید دنحښو له مخی څخه وپیژندل شی اوکه ثې نښښی دده دمصدریت له مخی څخه وټاکل شی . یعنی ترڅوچی موږ مصدر نه پیژنو، نښښی به ثې څه وپیژنو په داسی صورت کښې چی دنښښو څرك ثـې هم معلوم نه وي ، نودیوې صیغی مصدروالئ له دغه پلوه څخه طبعاً نیمــګــړی پاتیږي .

لومړی به په دغه برخه کښې یوازی دکاندید فعلی نوموورو سترونـی وځا ن ته معلوم کو. دغه ددې له پاره چی یوخو به په راتلونکو څیړنو کښې استفاده ځنی کوو او پیژونو به ثې . بل به په دی وپوهیږو چی ددغو پنځو فعلی نومو نښښی څه راز مورفیمونه دي اوهم به موپه نورو تحلیلاتو کښې ددوی دغه کاندیدی اړخ ترنظرلاندی وي .

لومړنی فعلی نوم یره خورا اشنانښښه د / ـــ ء ل / لری چی پخوامو دمصدری نښښی ترنامه لاندی بحث پرکړی دئ . دغه نښښه زموږ دمخنیو څیړنـو په نتیجه کښې دجمع غایب مورفیم دئ اوهغه هم فعلی نه اسمی . ځکه چی په پښتو کښې

داسماؤ جمع په /ـ ل/ سره نه ترله کیږی . له دغه فعلی سببه څخه نـود جمـع اسمی شکله مورفیم نه لری . مثالونه ئې داسی دی : وهـل ، بیرول ، بیریـدل کښیکښېل او نورداسی . یا په بل عبارت سر ه، دغـه وروستړونـی /ـ ءل ol ـ/ دغایب جمع مذکرفعل متصل ضمیردئ .

دو هم فعلی نوم د/ـء ./ زوره کی نخښه لری چی په واقعیت کښی د/ ـ ءل/ نخښی یو تخفیفی صورت دئ . نورکره وره ئی هم دورووستنی نخښی پهدود دی چی په دمخنیوخیړنو کښی په وضاحت سره مشاهده کړه شول. مثالونه ئیعبارت دی له بیر یده ، لیده ، تله ، کښیکښه اونوروداسو څخه .

دریم فعلی نوم د/ـ نګ / نخښه لری چی دمورفیموالی لهمخی څخه دمفرد مذکرافاده کوی . مثالونه ئی بیرو نـګ بیرید نـګ ، وهنـګ او کښېـیکښنګ غوندی دي .

څلورم فعلی نوم د/ ـ ښت /وروستړونیءلری . دغه هم دمفردمذکرمور فیم دئ اومثالونه ئی دغونځښت ،اوربښت،لـګښت په شا نیدی .

پنځم فعلی نوم د/ـنه/نخښه لری چیدفعلی نومودنوروورووستړونو په برخلافه ددووښـکـارهمورفیمولرونـکی ده . یومورفیم ئی /ـن ـ/دئ او بلئی وروستی زوره کی / ـ ء/دمفرد مؤنث مور فیم دئ .

دغه ورو ستړونی نخښه نسبت ونوروته لهمختلفولحاظو څخه متکاملـمه ده مثالونه نی بیرونه ، بیر ید نه وهنه ، کښیکښننه او داسی نوردی .

٤،٥ ـ د فعلی نومو تر منځ اسمی خصوصیتو نه یومشترک صفت دئ مـګر توپیر پـکښی شته . یعنی ځینی ئی نحوی اسمی خصوصیتونه لـری اوځینی ئی صرفی یا کلموی (Inflectional or Morphological ) اوحتی دواړه . سر بیره پر دغه خصوصیت لرنی ئی ځینی مشخصات واضح اوځینی ئی مغشوش وی . دغهصرفی او نحوی اسمی خصوصیتو نهدفعلی نومودتقسیم بندئ اوویشنی له پارهدوه مهم معیارونه تشکلوی چی څهنخه په دی ځای کښی او باالخصوص به ئی په څلرمه برخه کښی

نسبتاً په تفصیل سره څیړم .

الف ـ لومړنی فعلی نوم چی موږ د مصدر په نامه پیژندئ عبارت له هغی صیغی څخه دی چی په وروسته کښی ئی /ـ ء ل/ راغلئ وی لکه لګول، اوریدل او داسی نور. که څه هم دغه صیغه له معنوی لحاظه څخه د جمع معنی افاده کوی مګر له لفظی لحاظ څخه نه د افراد او نه د جمع مورفیم لری . دغه علت ؤ چی داسی صیغی محضی فعلی نوم Gerund و بللی سوی او له مصدریته څخه مو وایستلی .

له نحوی پلوه څخه دغه راز صیغی نسبتاً محدود داسمی استعمال لری . مګر فعلی جنبه یی پرغالبه ده . سربیره پر دغه باندی موصرفی صیغی د استمراری جمع غایب فعل ادء هم لری چی د /ـ ء ل / مورفیم ئی افاده کوی .

ب ـ د فعلی نومو په سلسله کښی دو همه صیغه د متداول مصدر یو تخفیفی شکل دئ لکه لګیده، اوریده او نور داسی له لګول او اوریدل څخه. په دغو صورتو کښی وروستنی /ـ ل /لویدلئ او صیغه تر/ ـ ل / په د مخه زوره کی /ـ ء/ یا /ـ ه / سره مختومه پاتی شویده ، لکه په دی وروستنی مثال کښی : لګیدل لګیده یا اوریدل ـ اوریده . بایدله یاده موونه وزی چی دغه راز زوره کی مختومه فعلی نومونه په عمومی ډول سره دلازمی صیغو محصول وی ..

څرنګه چی دغه فعلی نوم له متداول مصدره څخه ومنځ ته راغلی نو له صرفی او نحوی لحاظه څخه هم دهغه په شانی یو محض فعل دئ او طبعاً مصدر کیدلای هم نه شی .

ج ـ په دغه سلسله کښی دریمه دله فعلی نو مونه د لیګید نګ او لګو نګ په شانی دي . دصرفی اسمی خصوصیاتو له مخی څخه نسبتاً بشپړ حالات لری چی څیړنه ئی زموږ دوړاندی ده .

د ـ په فعلی نومو کښی څلرم شکل د لګښت او پایښت په دوددئ چی صرفی اسمی خواص ئی عمومیت نه لری، مګر دنحوی اسمی استعمال لرونکی وی . ترښې اندازی پوری دغه فعلی نوم دنحوی خواصو له پلوه و(لګید نګ) غوندی فعلی نامه ته ورته دئ .

هـ ــ دفعلي نومو دسلسلي وروستني صيغه چي زه ئې دلې ذکر کوم‌د لـگونه او پایدینه په څېرده . دغه کلمه هم لفظي اسمي تصریف لري اوهم نحوي اسمي استعمال . د لفظي اسمي تصریف له مخې څخه د(لـگو نه او لیـگید نه ) فعلـي نومونه هم‌دافراد اوهم دجمع مورفیمونه لري .سربیره پردغه‌باندې نومړي دول فعلي نومونه فاطي ، مفعو لي ، اضافي اونور دغه راز حالات لري چې‌وروسته به په مقایسوي توگه سره په پنځمه برخه کښې ولیدل شي .

په ( ۵ ، ۲ ) کښې ددغې خاصې چې هرفعلي نوم دفعلي مادې لـرونـکی‌دئ او د فعل پر حدوث باندې اطلاق کوي ، ذکـر شو یـدی . له دغـه پـلوه نـو د لـگـو نه او لـگـید نه غو ندې فعلـي نـو مـو نـه له یوې خوا څخه فعلي‌جنبه لري اوله بلې خوا‌څخه اسمي خصو صیتونه . زموږ له لومړني مطالعي څخه داسې ښکاریږي چې دغه شکل یوازنی پر ځای برابره صیغه ده چې دفعلیت اواسمیت دمجزاء اوبیلوبیلو وجوهاتو تـرمنځ داتصال حلقه جوړوي . یعنې ددواړوفعلي اواسمي خصوصیاتولکه څرنگـه چې ئې په تعریفا تو کښې ذکـر شویدی مصداق گرځي .

۵ ، ۵ ــ دفعلي نومو پورتنې ذکر شوې صیغې دصرفي حالا توله‌مخې څخه په مقایسوي توگه ترڅیړنې لاندې نیسو څودپورتني بیان احکام تـوضیح شوي وي . په دغه سلسله کښې یوازې دغه‌اسمي لفظي تصریف د افراد اوجمع لـه مخې څخه گورو. په دې برخه کښې به زموږ تطبیقي‌مثال د ( اوریدنـه) صیغه وي .

| فعلـي نـومـونـه | مفــرد | جمــع |
|---|---|---|
| اوریدل | — | — |
| اوریده | — | — |
| اوریدنگ | /پ/ | — |
| اوریښت | /پ/ | /ــونه/ |
| اوریدنه | /ــ ء/ | /ــې/ |

وهغوصيغوته چې دمفرد اوجمع ترمميزاتولاندې ئې د چامنفی نخښه ( + ) ایښوودله شویده معنی ئې داده چې دغه دمفرد اوجمع اسمی مورفیم نه لری بلکه دفعلی جمع مورفیم لری . چیری چې د (پ) نخښه پرته ده داسی مفهوم لری چې دغه دافراد یاجمع مورفیم شته مگرپه صیغه کښې پټ پروت دئ او خارجی لفظی وجود نه‌لری . په وړاندنیولیکنو کښې مولیدلی دی چې د ( اوریدل) غوندی دجمع غایب ماضی استمراری فعل شکلونه هم دی . یعنی دغه جمعوالی ئې فعلی دئ نه اسمی . دغه رازصیغی موږ له دې سببه څخه چې اسمی صرفی شکلونه نه لری محض اسم وبللی . مگرهرڅه چې وروستنی فعلی نوم (اوریدنه) دئ دنورو مفردومؤنثو اسماؤ اوصفاتوپه څیرپرقاعده سم دجمع او افراد شکلونه لری لکه : سپینه ، دبره ؛ سپینی ، دبری .

په (اوریدنه ) غوندې فعلی نومو کښې وروستنی زوره کی / a ـه / یوازی دافراد مورفیم نه دی بلکه سربیره پردغه‌باندی دتاءنیث مورفیم هم‌دئ چې دجمع مؤنث غبرگ مورفیم‌ئی معروفه/ ـی/ده . ددغه په پرته د(اوریدل)او(اوریده) غوندی صیغوجنسی حالت داسمیت‌له مخی‌نه څرگندیږی مگرپه فعلیت کښې‌دجمع مذکر افا ده لری . خو هر څه چې ( اوریدنگ ) او ( اوربنت ) دی د اسمیت له‌پلوه څخه‌پرمفردمذکرباندی دلالت کوی چې ددغه خصوصیت مورفیم ئې‌پټ یاصفردی ( نوراسمی مشخصات ئې په څلرمه برخه کښې وگورئ ) .

٥ ، ٦ - دلومړی برخې په تعریفاتو کښې اوهم په متداولو گرامرو کښی دغه په وضاحت سره کښیل شویدی چې مصدر به جامداومشتق منه وی . یعنی دی به پخپله قائم‌بالذات اوله بلی کلمی څخه به مشتق نه وی . بلکه نوری کلمی به لاله ده (مصدره) څخه اشتقاق مومی . ددغی ادعا دواړه اړخونه کورټ بی اساسه دی . مصدرنه جامددی اونه مشتق منه دی . جامدځکه نه دی چې پخپله پرتـړلو ریښواوتنوسربیره لـه‌ازادواسمواوصفتوڅخه هم جوړ شوی وی . دغه واقعیت موږپه ژبه کښې خوراپه اسانی سره‌پیدا کولای شو . دمثال په‌توگه ئې څومثالونه

لاندې وړاندې کيږي .

الف ــ ځينې مصدرونه له اسمه څخه مشتق دي لکه :

له غم څخه غمول یاغمونه     له بیرې څخه بیرول یا بیرونه

له زغ څخه زغول یا زغونه     له باد څخه بادول یا بادونه

ب ــ ځينې مصدرونه بیاله صفته څخه اشتقاق مومي لکه :

له پوه څخه پوهول یا پوهونه اوپوهیدل یاپوهیدنه .

له وچ څخه وچول یا وچونه اووچیدل یاوچیدنه .

له کوږ څخه کږول یاکږونه او کږیدل یا کږیدنه .

له سپین څخه سپینول یاسپینونه اوسپینیدل یاسپینیدنه .

ج- نور مصدرونه بیاله ریښې یا تنې څخه چې تړلې یاازمو رفیمونه دي جوړ یږي لکه :

له /وژ-/ څخه وژل یاوژنه. (۳) له /پریوت-/څخه پریوتل یاپریوتنه .

له/کښیناست-/ څخه کښیناستل یا کښیناستنه .

له/سوځ-/ څخه سوځول یاسوځونه اوسوځیدل یا سوځیدنه .

دپورتنیو مثالوله مخې څخه موږداسې حکم نه شو کولای چې مصدر یو جامد فعلي نوم دی اوله بلې کلمې څخه نه دی جوړشوی . ځکه چې دی په لومړنیو مثالوکښې له اسمه څخه په دوهمومثالوکښې له صفته څخه اوپه دریمومثالوکښې له ریښواوتنو څخه جوړدی. دغه واقعیت دهغه حکم اساس وروړانوی چې وایی مصدرجامد اوله بلې کلمې څخه جوړشوی نه دی پس دپورتنی بیان په نتیجه کښې مصدر پخپله یوه مشتقه کلمه ده چې له پورتنیودرومستقلو اومقیدوما دوڅخه ئې جوړښت اواشتقاق موندلی دی.

۷،۵- دمصدرپه باره کښې دوهم حکم داؤچې دی به مشتق منه ( زیږنده)وی اواشتقاق به له ده څخه صورت مومي. داچې مصدرد (۶،۵) په ثبوت اواستنا د جامد نه دی دغه رنګه مشتق منه (زیږنده ) هم نه وی . ددی له پاره چې نو رې

صیغې له مصدره څخه اشتقاق کیږي هیڅ قرینه اودلیل نشته . نو د غه حکم چې ترمخه ئې یادونه وشوه کورت دمننې وړنه دی. اوحتی د امکان موجود یت ئې لاهم نشته. پرځای ددی چې مصدردي مشتق منه و بولوبنه او اصحه به لاداوی چې پخپله ئې مشتق وبولو. ځکه په سر بیرن بیان کښې دغه څرگنده شوه چې مصدر له اسم، صفت، ریښې او تنې څخه اشتقاق کیږی.

دغه اشتباه چې مصدری شکل زیږنده اومشتق منه بولي اصلي علت ئې دعربي مصدر کلمې اقتباس اودهغې له لغوی معنی څخه استفاده ده. په دغه برخه کښې گرامریان دمصدرد کلمې په لغوی معنی پسې تللي دي نه دمصدری شکل په واقعیت پسې چې په ژبه کښې دننه پروت د ی ځکه چې د ژبې په د غومصد ر بلل شو و اشکالو کښې بالذات هیڅ یوه داسې نخښه نشته څوهغه پردی دلالت وکړی چې له دوی څخه نوری کلمې راوزی. پس علت څه دی چې موږ د غه ژبنی شکلونه مصدر بولو اومصدر بیا په هغه معنی سره اخلو چې دوتلو پرځای، زیږنده ا ومشتق منه باندی دلالت کوی. که موږ له هری فعلي سلسلې څخه هرفعلي نوم یا بل هرفعلي شکل رااخلو کولای شو چې د هغه له مخې څخه د نورو فعلي اشکا لو تصریف او اشتقاق بیان کو. دمثال په توگه ډاکتر پنزل (../ :1900 ) دپښتو افعالو صیغې دفعل له ماضي مادې څخه نه بیانوی بلکه دفعل دحال له مادی څخه ئې تصریفوی . (۱) په هره توگه یوتا کلې کلموی شکل پردی دلالت نه کوی چې یوازې ئې دغه صورت مشتق منه یازیږنده دی اونوری صیغې ئې په وجود راوړی دی . که چیری دغسې یوشکل دکومې فعلي سلسلې له پاره په ژبه کښې نه ؤنوبه ئې قیاس داسې وی چې مورینه ئې مره اوسیه لونی ئې درگنې پاتې وی لکه دمړل گورل اونورود اسوهغې. لنډه ئې داچې له مصدر صیغې څخه هیڅ اشتقاق نه کیږی. حتی له ده پرته دوهم کلموی شکل لاهم نسته چې له ده څخه د ی مشتق وی . پس مصدر یعنې څه؟

---

1.Her bertpe nzl,AGrammar of pashto washington,D.c.1955‹p.100.

مصدر په ژبه کښې هغه کلموی شکل دئ چې د فعلي ادا ء اسمي ښود نی په ناتیا کلي ډول سره کوی. نو اصحه ئی داده چې مجردا و نا تیا کلـی فعلـی نـوم و بلل شی. یادی مصدر په دغه صفت سره و پیژندل شی ، نه دزیږنده infinitive اومشتق منه په صفت سره. دغه مجرد او نا تیا کلي کلموی شکل چې مصد ر بلـل کیږی له موزه سره دوی عملي مرستی کوی. لومړ ی ئی خپلی اصلی وظیفه یعنی دتیا کلو ژبنیو مفاهیمو افاده‌ده . دغه وظیفه ئی په ژبه کښې دبـلی‌هر ی صیغی‌د وظیفی په تناسب مهمه ده. دوهمه مرسته ئی ثا نوی وظیفه ده چې په و ضعی ډ ول سـره ور ته تیا کله شو یده او گرامریان ئی په خپلو ژبنیو څیړ نو اومباحثو کښې د افادی او استفادی داسانتیا له پاره استعمالو ی . یعنی مصدری صیغه د مختلفو فعلی اشکالو مثل او ښکار ندوی گرځول کیږ ی. دغه ځکه چې مصدر دځینود اسو خصوصیا تو لرونکی‌دی چې‌هغوی‌دی ددغی تمثیلی‌وظیفی‌وړ گرځوی. دغه خصوصیتو نه ترمخه بیان شوی اوهم پسی بیانیږی .ددغی وضعی‌و ظیفی له‌مخی‌څخه‌مصدر داسی تصور کړه‌شو یدی‌چې بو یه زیږ نده‌او مشتق منه به وی .

دمتداول گـرامر له بیانه سر ه سم دمصدری نخښې په‌الیشیدنه سره‌له مصدره څخه نوری مر بوطی صیغی تصریف او اشتقاق مومی . دغه پیژ ندنه‌ئې ډیرساده او وذهن ته نـژدی ده . ځکه چې ډیرو پخوانیو اوحتی ابتدائـی‌گرامر یانو لامصدرو موز ته په دغه صفت رامعرفی کړی دئ. له دغی‌موضوع سره یو بل واقعیت هم اړه لری چې هغه دپخوا نی ذهن یو‌ه‌خاصه،رشه اوغر یزه ده.هغه‌داسی‌چې هر څه باید وځان ته یوه تیا کلـی منبع یامبدأ ولری . دغـه منبع باید بشپړه، متکامله اوقائم بالذات وی . بشپړ والـئ خو به‌ئی ښایسی له دې پلړه څخه وی چې غیرمتکامل ذهن غیر متکامل مصداقونه ، نه درك کولای او نه ساتلای شی‌مگر پر متکاملو اشکالو باندی ئې هم دادراك اوهم‌دحافظی‌قوه غښتلی‌ده.خومتکامل ذهن‌دواړه رازمفاهیم درك اوخوندی کولای شی. په دغه وروستنی صورت کښې نوموز مصدرهغه ریښه یاتنه چې دفعل اساسی ماده ده بو لو. په ننني ژبپوهنه کښې‌دفعل یا بلی هر ی کلمی

اساسي ماده دهغي اومربوطوصيغومصدر (دکلمي په لغوی معنی) بلل کيږی. مګرپه تدريسی لحاظ دافادې او استفادې دسؤوانئ لهپاره هره موزونه اوبشپړه کلمه په وضعي ډول سره دغه وظيفه ترسره کولای شي .

نتيجه ئې داسیده، که مصدرپه ابتدائی سويه يعنیدژبیدښوونی اوتدريس له پاره کارځنیاخستل کيدئ ، نوښه اوغوره ئېداده چی په ژبه کښې يوعموميت لرونکئ فعلی نوم پحپله بشپړه ښه سره دنوروم‌ربوط کلموی اشکالونماينده او ښکارند وی وګرځول شي . دغه ددې لهپاره چی دوروستنی نخښې ياتبادلوی مورفيم په اليشيد و سره ئېدنوروصيغوپهګردان کښېسووانی پيښه شی . مګر مصد رپه لوړه سويه سره يعنیدژبنی تحقيق اومطالعیپه لار کښې عبارت دصيغی له اساسي مادې څخه دئ. ودغی برخی تهدنوروورروستړونږياسرتړونه په اضافه توب سره صيغی تصريفی او اشتقاقی تشکل پيدا کوی. پس دپخوانی خصوصيت پراساس باندی ئې چی مصدربهجامداومشتق منه ویڅه مثبته نتيجهبنأ نهده. بلکه فهم ئې له واقعيته څخه ليری اوموزدژبی په جزړښت اوساختمان غلط پوهوی . ځکه چی دغه خصوصيت ئې وضعی دئ نه ذاتی. له دغه پلوه څخهنوپرهيڅ فعلی نامه باندی نوموړی خصو صيت دمصد ريت صدق نه پيدا کوی .

۸،۵ ــ مصدربايد دخپلوتهواوتصريفی اواشتقاقی اشکالوشاملاومشمولوی پوړتنی حکم دوه بيل اړخونه اری . يوئې دادئ چی مصدراوپه هغه پوری مربوطی صيغی بايد ديوی مشترکی مادې (ريښې ياتنی) ارونکی وی . دغه حکم په ژبه کښې ديره عمومي واقعيت په توګهصدق مومی مګرجامع نه دئ . ځکه پښتواوځينی نوری ژبی يوه سلسله داسی صيغیاری چی ريښه ياتنه ئې پهماضی کښې يورازوی خوپه حال کښې ئې يوې برخی تغييرخوړلی وی يا ښا ؤ خوا . (دغه پيښه موږ له يوه بل واقعيته سره هم مخامخ کوی اوهغه دادئ چی د پښتو افعالواصلی يابسيطی صيغی فقط دوې زمانی ښووی چی هغه دغه اوسنی اوتيره زمانی دی .نورزمانی حالات هيڅ نه لری مګرپه مرکب ډول له مرستيزوافعالو

سره) . زموږ دمصدری شمولیت ترلاس لاندی موضوع مثالونه داسی دی:

| متداول مصدر | ماضی صیغه | حال صیغه | |
|---|---|---|---|
| اغوستل | اغوستئ | اغوندی | (مفرد مذکر غایب) |
| غوښتل | غوښتئ | غواړی | « « « |
| موندل | موندئ | مومی | « « « |

له پورتنیو مثالو څخه دغه له ورایه څرګندیږی چی عنعنوی مصدری نخښه / ـ ء ل / په ماضی صیغو کښې له یوه تاکلی مورفیمه / ـ ئ / سره الیشه شویده. مګرپه حال صیغو کښې سربیره پرورو ستړونی مورفیم باندی نور تغییرات هم لیدل کیږی چی مصدردهغو حاوی نه دئ اویامصدردهغو مشمول نه دئ سره له دی هم دماضی اوحال صیغو ترمنځ ځینی مشترك عناصر لیدل کیږی.

دوهم اړخ ئې ترلومړنی ډیر کره دئ . په دغه باره کښې فقط دونه توقع ساتله کیږی چی یوه تاکـلی د له ( category ) صیغی چی مربوط مفاهیم افاده کوی باید له مصدره سره خولږ ترلږه څه لفظی مناسبت اواړیکی ولری . په وړاندنیو مثالو کښې مو ولیدل چی دفعلی مادې دیوې برخې اشتراك بیاهم دماضی اوحال صیغو ترمنځ موجودو. مګرپه موجوده اړخ کښې دغه لږ اشتراك ئې لا هم له منځه ځی . داسی چی له مصدره څخه دمتصرفه صیغوشکلونه په ماضی کښې یو رازاوپه حال کښې کورټ بل رازوی . یعنی ددغوافعالو دماضی او حال صیغی هیڅ لفظی رابطه نه ښکاره کوی لکه :

| متداول مصدر | ماضی صیغی | حال صیغی | |
|---|---|---|---|
| تلل | تلئ | ځی | (مفرد مذکر غایب) |
| لیدل | لیدئ | وینی | « « « |
| کتل | کتئ | ګوری | « « « |

په لوړومثالو کښې دغه واقعیت چی دحال زمانی صیغی له مصدره سره هیڅ لفظی اړه اومناسبت نه لری نوهغه حکم چی مصدرزیږنده او مشتق منه دئ بیا هم

تردیدوی . دغه پیښنه له وړاندنی انتقاده څخه په دې ډول ژغورل کیدای شي چې ووایو نوموړی اختلاف اوبې ارتباطی دتاریخی جریان اوشرایطو مولود ده . که څه هم دژوندی ژبې په تشریحی مطالعه کښې ددغه رازحوالومراعات نه کیږی مګر بیاهم په واقعیت کښې ژبه دتاریخی سیرمولوداوپه دغه جریان کښې تحول اوتکامل مومی . په هره توګه دغه حکم چې مصدر باید دخپلومربوطو صیغو شامل او مشمول وی جامع نه دئ مګرعمومیت لری . دغه پیښنه دفعلی نوموپه کاندیدوالی کښې څه اغیزه هم نه ښندی ځکه چې تقریباً ټول متشابه شرایط لری.

۹،۵ـ مصدری شکل باید په ژبه کښې تعمیم ولری. یعنی ټولی فعلی تصریفی او اشتقاقی سلسلې بایدهره یوه وځان ته بیل مصدرولری . پدغه نیامت موږ دپښتو هغه پنځګون فعلی نومونه چې دمصدروالی له پاره کاندیددی لاندی ترکتنی لاندی نیسو.

۱۱۹۵ــ متداول مصدرچې مختوم په / ــ ء ل / سره دئ پرته له څواستثنائی صورتوڅخه نورپه ټولوفعلی سلسلوکښې وجودلری. معنی داچې پوره عمومیت ئې موندلی دئ اوعلت ئې هم دادئ چې دغه شکل یاوروستړونی مورفیم ئې ذاتاً دجمع مذکر غایب استمراری فعل وظیفه لری . یوه ژبه چې هرڼګه شي باید دخپلوافعالودتکمیل ضرورت ئې رفع کړی وی څود ژبنی افادې اساسی وظیفه ئې وسرته رسولی وی. نود دغایب مذکرجمع استمراری فعل موجودیت په ژبه کښې حتمی دئ که نه دفعل تصریفی ګردان اوژبنۍ افاده به ئې نیمه خوااوګوڼګه وی .

۲۱۹۵ــ که څه هم دغه فعلی نومونه چې د / ء ــ ل/ وروستړونۍ مورفیم اری په هرفعلی سلسله کښې راځی مګرسره له دې ئې هم د (ویاړل )او(مړل) صوروتونه نامأنوس یاخوپه اوسنۍ ژوندۍ ژبه کښې وجودنه لری(۲۵۹۵ وویني ) .

۳۱۹۵ ــ ځینو ګرامر پوها نو په پښتو کښې داسې صیغې لکه : بوتلل ، یوول ،ولاړل اوشول هم مصدرونه ګڼلی دی چې واقعیت داسې نه دئ . ددغې اشتباه یوازنی علت دجمع مذکر غایب فعل مورفیم /ــ ل/موجودیت دئ . ددغو

صیغو په باره کښې تر مخه (۳، ۳-۳، ۱۲) او هم و ر وسته په تفصیل سره ږغیدلي یم دلې ئې تش‌دو نه یادونه کوم چې دنومورو صیغو متناظر شکلو نه په ژبه کښې په ترتیب‌سره: بیول، وړل، تلل او کید ل دي ددوی تر منځ شکلي تو پیر دداسې معنوي‌تو پیر سبب گرځي چې وروستې استمرار ی او دمخنې شکلو نه مطلق یا بشپړحالت افاده کوي چې په‌عمومې ډول سره د/ و-/ سر ترونې مورفیم لري لکه: ولیدل، وبخښل، وسوځل او نوري یادغه‌رنگه‌نوري خجو الاصیغې دپخوا په شانې که‌چیری بو تلل، یووړل، ولاړل، اوشول جمع‌مذکرغایب بشپړي‌ماضي صیغې مصدرونه‌شي نوئې الومورفیک alomorphic /و- / سر ترونې والاصیغې‌هم پرخپل سر بانـدې مصدرونه‌گرځي. مگر دمتداول گراموليکو الوودغې موضوع نه‌څه اشاره‌نه‌ده کړې‌یعنې په‌مصدروالي سره ئې نه‌دې‌منلي. په‌دغه‌صورت کښې نوددوی دموقف په‌استناددبو تلل، یووړل، لاړل‌او شول‌صیغې کورت نه‌شي‌مصد ر کیدلای.

٤۱۹٥- څو نوري صیغې چې داسې استعمال ئې‌شخصا وماته سره له‌دې چې له‌ډیرو لهجو سره مې تماس نیو لي‌دئ خورانامأ نوسې ایسې. مطلب دا چې دغه راز استعمال به‌ئې په‌خورا یوه کوچینې‌محدوده‌لهجه‌پو رې اړه لري. دغه‌صیغې عبارت‌دي‌له: نیسل، باسل، زمویل (زموُلل) او‌مومل. څخه‌چې‌واقعې مصدرونه ئې‌داسې دي: نیول، ایستل، زمولول، زمو لیدل(زمولنه، زمولیدنه) ومو ندل.

یو بل‌اساسي اعتراض ودغو نومولو‌مصدرو ته‌متوجه کیدای شي. هغه‌دا دئ چې زموږ گـرامر پوهـانو خو پخپله دیوه‌اصل په‌تو گـه راته ویلـي‌دي چـې‌مصدر د ماضـي فعلـي ما دي لرونـکي وي. که ددوی‌دقو ل په استنـاد سره دغه اصل رشتیا وي نوتر بحث لاندې صیغې مصدر کید لای نه‌شي. ځـکه چـې په نیسل، باسل، زمویل یامولل او‌مو مل کې دماضـي فعل ماده چیرې‌ده؟ تولـي‌صیغې ئې دحال زمانې سره‌اړه لري: نیسـي، باسـي، زمولـي‌اومومي.

٥۱۹٥ -په‌ژبه کښې داسې کـلمې پیداکیږي چې کره وره‌ئې دمصد رپه دود وي‌او کلـه کلـه داشتباه باعث هم گرځـي. مـگر په‌واقعیت کښې هغه اسمونه

وی لکه : درمل ،گومل ؛ لرمل ، کچل، کنجل . . . .

۲۹۵ــ بل فعلی نوم چی په وروسته کښې ئی / ــ ه/ راځی په واقعیت کښې د/ــه‌ل /وروستړونی یو مخفف شکل دئ مگر عمومیت ئی دغه په اندازه سره نه دئ لږ لږ له‌ریښه والا مصدر ولکه تلـل ، کتـل، بازل څخه تله ، کـاته ، بازه جوړیږی . خو په عمومی‌دول سره له لازمی فعلی نومو څخه منځ ته راځی لکه‌له خوزیدل، بهیدل او پوهیدل څخه خوزیده، بهیده او پوهیده. مگر له خوزوول ، بهول او پوهول متعدی صیغو څخه بیانه جوړیږی . یعنی دغه مشکل په ټولو فعلی سلسلو کښې وجود نه لری اوتعمیم ئی نه‌دئ مو ند لئ .

۳۹۵ ــ دریمه ډله فعلی نومونه چی د/ــ نگ / وروستړنی لری او بالعموم د/ــه‌وـ/ متعدی او /ــید ـ/لازمی صیغو څخه تشکل مومی لکه خوښونگ او خوښیدنگ غوندی . په ریښه ایزو افعا لو کښې تام عمومیت نه لری . سر بیره پردغه باندی /ــ نگ/ والافعلی نومونه په ژبه کښې لهجوی موقف لری او عمو میت ئی نه دئ موندلئ اویائی نه‌دئ ساتلئ .

٤۹۵ ــ هغه فعلی نومونه چی په /ــ ښت/سره دی دفعل له‌ریښې سره نه‌له تنی سره فعلی نومونه‌جوړوی . مــگر پیښه داسی ده‌چی دغه نخښه له‌یو محدود شمیر ریښو سره‌تړله کیږی . یعنی په‌هره فعلی سلسله کښې وجودنه‌لری او عمو میت‌ئی نیمگړ ی دئ .

۱۵۹۵ ــ دپنځگو نو کاندید فعلی نومو له ډلی څخه/ ــ نه/ وروستړونی والا فعلی نوم نسبت وبل هرفعلی نامه ته تام عمومیت لری . یعنی په هره فعلی تصریفی او اشتقاقی سلسله کی ئی خپل کورډك کړی دئ . مهمه ئی لا داده چی بله اصلی یا ثانوی وظیفه لاهم نه لری‌لکه / ــ ه‌ل/ نخښه والافعلی نوموچی لرله .

۲۵۹۵ ــ/ــ نه/ وروستړونی والافعلی نومونه په‌خندل اوژړل سلسلو کلماتو کښې نه جوړیږی . دغه نقیصه دوه علته لری . یوداچی دخندااوژړافعلی نوموئی ځای نیولئ‌دي اود دوی دضرورت تلافي ئی کړیده . بل داچی (خندل) او(ژړل)

هغه فعلي سلسلي دي چي له (خنديدل) او (ژړيدل) څخه ئې نسبتا نوی انکشاف کړی دئ . دمثال په توګه دښاييدل اوښکاريدل دښاييزي اوښکاريزي پرځای باندې موږ نن ښايي اوښکاري هم وايو اوحتى تراصلي شکلوئې استعمال هم ډير دئ. دغه رنګه هم دخنديزي اوژړيزي پرځای باندې نن خاندي اوژاړي رواج لري چي خندا اوژړائي فعلي نومونه دي خو خندنه اوژړنه ئې ترقياس وها خواته څه مأنوسيت نه لري.

دغه يوازي داسي نه چي له خندل اوژړل فعلي سلسلو څخه خندنه اوژړنه فعلي نومونه نه جوړيږي بلکه نور فعلي نومونه اوفعلي صفتونه ئې هم نامروج اونامأنوس دي لکه : خندنګ اوژړنګ ؛ خندښت اوژړښت ؛ خنده (خندا) اوژړه (ژړا) ؛خندوني اوژړوني؛خندونکي اوژړونکي ؛ خندلي اوژړلي ځکه چي اصلي شکلونه ئې له خندونه اوخنديدنه څخه داسي جوړيږي: خندونګ اوخنديدنګ ؛ ژړونګ اوژړيدنګ؛ خنديده اوژړيده ،خندووني اوخنديدوني؛ژړووني اوژړيدوني ؛ خندونکي اوخنديدونکي؛ژړوونکي؛ اوژړيدونکي خندولي اوخنديدلي ؛ ژړولي اوژړيدلئ .

په (۲۱۵۵) کښې موولیدل چي د وياړل اومړل مصدرونه هم په متداول ډول سره په دغوسلسلوافعالوکښې نامأنوس دي . خو که د / ــ نه/ وروستړونئ ورواچول شي نوخپل خورا مأنوس اشکال په لاس راکوی لکه: وياړنه اومړنه .

۳۵۹۵ ــ هغه فعلي نومونه چي د /ــ نه/ وروستړونئ لري په هره فعلي سلسله کي ئې يوواحدشکل موندلای شو. يعنې يوداچي موجوديت ئې عموميت لري اوبل کوم سيال اوساری ياپه بله اداء سره څه داسي غبرګولي فعلي اسمي شکل نه لري چي خوك دي ئې په ده سره اشتباء کړی لکه په /ــ ل/ مختومه فعلي نوموکښې چي له دغسې يوه رازالتباسي اشکالوسره مخامخ ؤ (۳۱۹۵) .

۴۵۹۵ ــ د/ ـ نه/ وروستړوني والامصدرونه له خپلومربوطوواړوفعلي نومو

اوصفاتو بالعموم له تولو منظمو فعلي اشكالو سره اود نامنظمو فعلي اشكالو له ماضي برخي سره ئي دريښي ياتني ماده مشترکه ده .

/ ــ نه / والا فعلي نومونه کوم داسي شکل نه لري چي هغه وي دنامنظمو افعالوله حاليه صيغي سره اړه ولري ځوددغي سلسلي افعالوله پاره دوه مصدرونه منځ ته راولي لکه نيول اونيسل يا ايستل اوباسل چي تر مخه ئي په (٤١٩٥) کښي يادونه شويده . که چيري موږ په ژبه کښې دغبرګو مصدرو موجوديت ومنو له ګډوډتيا اومشکلاتوسره مخامخ کيږو . ځکه داسي ډيري نامنظمي فعلي سلسلي شته چي حتى دمترادف مصدر تصورئي لاهم نه شو کولای مثلا دتلل او * ځل چي په حال زمانه کښي دځم ، ځي غوندي اشکال لري . يادوړل او * ايوسل هغي چي د يوسه او يوسي په څيرصورتونه ومنځته راولي . دغسي ډيرنورمثالونه شته چي وژبپوهانوته دڅيړني په زړه پوري موضوع جوړوي .

٥٥٩٥ ــ لکه په (٥١٩٥) کي چي د/ــ ل/وروستړوني والافعلي نوموغوندي مطلق اسمونه په ژبه کښې پيداشول دغه رنګه د /ــنه/وروستړوني والافعلي نومو په شان هم مطلق اسمونه اوصفتونه په ژبه کښې موندل کيږي لکه : پوهنه ، وښنه اوځينی نورداسي . دری ژبه هم داسي اسمونه لري چي د هغي دمصدرغوندي ايسي لکه: ګردن ، بدن ، ګرګدن ، ختن ، خفتن اوخويشتن مګر په واقعيت کښي مطلق اسمونه دي .

له پورتنيو څيړنو اوخصوصا د (٥،٩) د (١١ــ٥٥) له مطالعې څخه داپه وضاحت سره څرګنديږي چي په پښتو کي مصدرونه د سوځل ، سوځول اوسوځيدل په شاني نه بلکه دسوځنه ، سوځونه اوسو ځيدنه غوندي دي چي مصدري نښه ئي د/ ــنه/ وروستړونی مورفيم دئ . اوس چي نسبتا پس له يوې اوږدي څيړني څخه د / ــ ل/ پرځاي باندي / ــ نه / دمصدري نخښي په توګه پــه لاس راکښيوته ، نوئي په دې پسي بيان کښې دګاوندوژبو له مصدري نخښو سره مقايسه کوو .

۵-۱۰- پښتو یوازې دخپلې آریاني کورنۍ ژبوڅخه دیرې ګاونډۍ ژبې لرې چې اکثره ئې خورا نژدې دخور ګلوې اوخورلنې رابطې ورسره ساتي لکه‌منجي سنګلیچي - اشکاشمي ، واخي ، شغني ، اورمړي ، پراچي اوبلوڅي ژبې . مګر په یوه اوږده اسویلي سره ئې باید منو وکم چې تریوې ژورې مطالعې دمخــه ددغوژبوپرهرفعلي اسمي شکل باندې دمصدرنوم ایښودنه به یوه علمي ګناه وي. زه اوس دیوې داسې ژبې دمصدري شکل په پیژندنه پسې یم چې هغه دپیړیوپیړیو ادبي تاریخ لرې نوچیرې هغه ژبې چې تراوسه پورې لادقلمه غاښې نه دئ پــه جګ شوئ . ځکه نوددوې دمصدري اشکالوله مقایسې څخه بخښنه غواړم اودغه هیله مې یوازې په هغوژبو کېښې لکه دري اوهندي چې دادبیاتـواوګرامــراوږده سابقه لري ترسره کوم .

ددرې ژبې مصدري نخښې دپخواني صرف ونحوپراساس دعربــې دضرباً (ضربن) په تقلید عبارت له (- تن) او(- دن) څخه دي . دتوضیح له پاره ئې داسې تبصره‌پرکیږي‌چې که مصدري علامه له مصدره څخه ایسته شي‌نود(ضرب) په شاني‌ئې دمفرد غایب مطلق ماضي شکل پاتېږي لکه (ګفت) او(کرد) له ګفتن اوکردن څخه . داوسنۍ ژبپوهنې پراساس‌که پورتني ښکارندوې مثالونه وکتل شي په تصریف کېښې ئې له دواړوڅخه یوازې د/ - ء ن/ برخه ایسته شویده . خو (ت) او(د) دواړه له فعلي مادوسره داصلي اجزأ وپه شاني پـاتي‌شویدي . نوکه دیوه مورفیم ذاتي عناصرپریکړل شي اوله بله مورفیمه سره خوشي وتړل شـي د دواړومورفیموله پاره به ئې‌نتیجه بې معنې توب وي . کـله‌چې ددرې ژبې لــه مصدروڅخه تصریف اواشتقاق صورت‌نیسي نو(ت) اود(د) دفعلي مادې داساسي اجزأوپه شاني په ټولوصورتو کېښې خپله حال زماني څخه لکه په پښتوکې ثابت پاته کیږي .یعنې (- تن) او(- دن) ئې تصریف نه مومي بلکه هغه یوازې دمصدر /- ء ن/ جزء وروستړونۍ دي چې صرفي یاتبادلوې وظیفه ترسره کوي .

په هندي ژبه کېښې مصدري نخښنه عبارت له /- نا/ څخه ده . دغه نخه د پښتو

دمصدری نخښې په شانې یوه واحده هجایاسیلابه ده . مګرددری ژبې مصدری نخښه /ـ ء ن/ دفعلی مادی له ورستنی فونیم اودهغه له الوفون سره یوځای یو واحده سیلابه جوړوی . دعربې ګرامر پرتقلید سربیره دغه اشتراکی یوسیلابه والی بنایې بل مګرعمده علت ؤ چې (ـ تن ) او(ـ دن) دهغه له مخې څخه مصدری علامې بلل شوی دی. مګر دسیلابې یو والی دامعنی نه ورکوی چې خودبه نوهغه سیلابه یومورفیم یایوه نخښه هم وی . ځکه چې مورفیمو الی اوسیلابه والی څه ذاتی اړه نه سره لری . کیدای شی چې یومورفیم دی اویاځوسیلابې وی لکه خروړك (یورازنبات دئ) یادی یوه سیلابه روزمورفیمه وی لکه تلم چې دتګ مورفیم ، دماضی مورفیم اودمتکلم ضمیردرې سره یکښې یوځای شویدی . که څه هم دپښتو اوهندی ژبو مصدری مورفیمو نه له فعلی مادی څخه بیلی بیلی سیلابې دی اودغه خصوصیت ئې سره مشترك دئ مګر بیاهم توپیری یکښې لیدل کیږی .
دهندی ژبې په فعلی مادی پسې زوغ یافونیم ددغې فعلی مادې اصلی جزء دی چې کله ساکن کا نسونټ او کله اوزد واول وی . ولی په پښتو کښې دغه یولند واول وی چې نه دفعلی مادی جز دې اونه د مصدری مورفیم بلکه د دوی دواړو ترمنځ اتصالی وظیفه لری لکه دعطف Conjunction توری په جمله کښې. دپښتو دغه اتصالی خصوصیت ددری ژبې له هغې سره اشتراك لری. مګرتوپیرئې دادئ چې په پښتو کې د فعلی مادئ اومصدری مورفیم دسیلابو دبیلوالی فاصل ګرځې مګرپه دری کښې ئې دیووالی عامل ګرځې . دغه اتصالی فونیم یا که له نحوی عطفی شکله څخه استفاده وکو نو به وویلای شوچې تشکلی مورفیم Structure formative په پښتو کې عبارت له زورکی اوپه دری کښې عبارت له زورڅخه دئ. په دې لحاظ نو دپښتو اودری ژبو مصدری شکلونه داسې نه دی لکه /ـ ء نه/ او/ـ ءن/ بلکه د/ـ نه/ او/ـ ن/ په څیردی .

/-n/ /-na/ /-an/ /-ana/

دپښتو مصدری نخښه لکه ترمخه چې ئې یادونه شویده یومورفیم نه بلکه دوه مورفیمه ده .

يوڅې مصدري مورفيم چې عبارت له /ـن/ څخه دی او بل ئې دمفرد مؤنث وروستروني مورفيم د/ـه /يا /a-/ / ـه / زوره کې دی .

اوس چې ئې دمصدرونخښې را معلومې شوې نوله دريووستروژبو څخه يوڅو مصدري مثالونه دمقايسې په توګه وړاندې کوم څوېي لوستونکوته مناسبت ورڅرګند شي :

پښتو: غوښتنه ليدنه وړنه خنديدنه سوځونه سوځيدنه سوځنه

دری: خواستن ديدن بردن خنديدن سوزاندن سوزانيدن سوختن .

پښتو: پالنه تلنه څيرنه بليدنه بلونه مسيدنه بلنه.

هندی: پالنا تولنا چيرنا بلنا بالنا مسکانا بلانا.

| دری : | پښتو | هندی |
|---|---|---|
| پخته شدن | پخيدنه | پکنا |
| پختن | پخونه | پکانا |
| کردن | کړنه | کرنا |
| پرسيدن | پښتنه | پوچهنا |
| چليدن | چليدنه | چلنا |
| چلاندن | چلونه | چلانا |
| بسته شدن | بنديدنه | بندهنا |
| بستن | بندونه | بندهوانا |
| چشيدن | څکنه | چکهنا |

# لنډيز او نتيجه

پرځای ددې چې ويوې تيا کلي نتيجي ته دي رسيدلي يوضمناً ځيني نوري منفي او مثبتي نتيجي هم په لاس راغلي دي. دغه مختلفي نتيجي له سرځخه ترپايه پوري ستاسو تر نظر تيري شوي دي. مګرد دوی ضمنيت به ديوه لنډيز صراحت په شاني لاندی بيان شي .

٦(١١-٧١) : مصدر په ژبه کښې د کلمي يو واحد شکل دئ. کلمه چې ئې موږ و چا ته ور پيژنو هم بايد دغه يوازني شکل ورو ښوو. مګرد(١-١، ١-٧) له تعريفاتو ځخه دارا ځرګند شوه چې مصدر يوه واحد شکله صيغه نه بلکه مخمس شکله ده. يعني له پنځو زاويو ځخه ږرته کتل شوی او دهغو له مخي ځخه بيل بيل تعريف شويدئ. دغه پنځګون اړخونه ئې داسي وه: (١-٢) دمصدر کلمي دلغوی معنی له پلوه؛ (١-٣) له اصطلاحی پلوه ځخه؛ (١-٤) دمصدر کلمي دلفظي شکل له پلوه ځخه؛ (١-٥) دمصدر له اصطلاحي او لفظي دواړو پلوو ځخه په ګډه، او (١-٦) دمصدر کلمي دلغوی معنی او اصطلاحي فهم له مخي ځخه په ګډه تعريفونه وه. له دغو پنځګونو زاويو ځخه دمصدر ليدنه او په نتيجه کښې د ګرامريانو اختلاف مو ندنه زموږ په ګټه دئ. ځکه چې ددوی مختلف نظرونه ديووالي په نيامت سره يوځای کونه، دغل ؤغشي ياخلي او خاشي ځني ايستنه ئې موږ ته دمصدر هغه ګډتوب اصلي شکل په لاس راکوی: مصدر هغه تيا کلي نخښي لرونکي فعلي نوم دئ چې په ژبه کښې داستعمال تيا کلي اسمي خواوی او فعلي اداء ولری .

٦(١،٨): په غربي ادبياتو کښې چې دتقليد منبع ئې يوناني او لاتيني ادبيات وه

(لکه زموږ هغې چې عربې وه) دمصدر له پاره يو بيل نظر لري. هغه دادئ چې دوی مصدرديوه ناتها کلي فعلي نامه په شاني پيژني. مگرسره له دې کله چې ويوه خاص فعلي شکل ته دتعيين اشاره کوی نووايي چه له اينيفينتيو څخه دئ.

٦(١٢-٥٢) : دمصدر يوازني نخښنه هم په متداول گرامر کښې پر پنځه ډوله وه دغه پنځگوني نخښې عبارت وی له : /ـ ء ل/، /ـ يدل؛/ـ ول /؛ (کيدل) او (کول) څخه . د (٢،٢) په څيرنه کښې موږ په دی وپوهيدو چې په لومړنيو درونخښو کې يوازی /ـ ل/ متداوله مصدری نخښنه ده چې تصريف مومي اوهرڅه چې /ـ ؤ ـ/ او/ ـ يد ـ / نخښې دی دواړی بيل بيل دتعدی اولزوم مور فيمونه دی . يعني دوی دمصدری مورفيمواجزأنه دی بلکه وخپل ځان ته هريو بيله وظيفه اومعنی لری. په (٥،٢) کښې موږودی نتيجې ته ورسيدوچې پښتو د(کول) او(کيدل) غوندی مصدری نخښې نه لری . دغه دواړی صيغې پخپله مستقل مصدرونه دی چې فعلي ماده، تنه ايزيادلزوم اوتعدی مورفيمونه اوهم هغه يوازنی مصدری نخښنه لری. خوڅرنگه چې د مرستيزوافعالو يوډيره نوعه ده ځکه نوله نوروصفا تو اواسما ؤسره ترکيبونه جوړوی . دترکيب وجوړونه ئې په هيڅ گون اودوی ته دمصدری نخښې حيثيث نه ورکوی. که پيښه چيری داسی وی چې دترکيبي شکل مثلاً (پريکول) سرترونئ اصلي برخه او (کول ) ئې مصدری نخښنه وبلل شی شی نوبه په قياسي ډول سره د(پريوتل) او(پريښوول ) په صيغوکښې هم ( ولل اوښوول) مصدری نخښې وی . مگر زموږ گرامر پوهانوهيڅ اشاره لاهم نه ده ورته کړی. داچې ولي ئې نو(کول) او (کيدل) مصدری نخښې بللی دی ، علت ئې دترکيبي خصوصيت لرنه ده . دغه خصوصيت په(ولل)او (ايښوول ) مصدرو کښې عموميت نه لری. ځکه چې دوی دمرستيزوافعالو له ډلې څخه نه دی. مگر(کول ) او (کيدل) مصدرونه بيادغه اړخ لری چې نور مرستيز فعلونه په اصطلاحي معنی سره ځنی تصريفيږی. په دغه برخه کښې وموږ ته له پنځو مصدری نخښوڅخه يوه په مثبت ډول راپاته شوه اود نورونتيجه منفي ده.

٦(١٣-١٤٣)؛ په دغه برخه کښې وموږ ته په عمومي ډول سره د غه لاندې نتيجې په لاس راغلې. که چيرې څوك مصدر په وروستړوني نخښنه سره پېژني نو بيا له يو راز مغشوش حالته سره مخامخ ېږي او همېشه به په دووزړو وکړې وي چې دمثال په توگه وتل او وليدل کلمې مصدرونه دي که نه دي. ولې چې دي به دغه صيغې دڅرنې په يوه داسې ځای کښې ووينې چې دده به گمان نه پرراځي لکه: زه وتم؛ زلمي وتئ؛ دوی وتل. په دغو جملو کښې /وت-/ فعلي ماده ده او/ - م/ مفرد متکلم ضمير /-ئ/ مفرد غايب مذکر ضمير نو/- ل/ هم دنورو وروستړو نومورفيمو په توگه دخپل مبتداء ښکارندوی يعنې دجمع غايب مذکر ضمير دئ. اوس موږ په دووزړو کې شو چې /- ل/ وروستړوني نخښنه کله مصدري مورفيم وی او کله بيا دجمع غايب مذکر ضمير وی په استمراری حالت کښې.

اوس که نود(وليدل) صيغې تصريفي اشکال دمخنې مثال په توگه وگورو (زه وليدم؛ زلمي وليدئ؛ دوی وليدل) نو به وپوهيږو چې /-م - ئ - ل / هغه ددمخنې مثال مورفيمونه دي مگر معنی ئې ولې اوښتی ده. کله چه په ژ به کښې پسې وگورووموږ ته به د(وليدل) سره سم يو بل شکل د(ليدل) هم په لاس راشي چې مثالونه ئې داسې دي: زه ليدم؛ زلمي ليدئي؛ دوی ليدل. دغه معنی داچې ليدل او وليدل غبرگ مصدرونه دي اودواړه تصريفي اشکال لري مگر يو دمطلق حالت او بل داستمراری حالت هغې. خودغه دغبرگو مصدرو پښه په عمومي ډول سره زموږ گرامر پوهانو نه ده منلې خو ځينې ئې سهوا مصدرونه بللي دي لکه: بوتلل يووړل، او يوځونور داسې. مطلب داچې (ليدل) استمرا ری جمع غا يب مذکر فعل دئ او(وليدل) ئې متناظر مطلق جمع غايب مذکر فعل کيږي. په دغه صورت کښې نو نه ليدل او نه وليدل مصدري شکلونه دي.

دمطلق حالت سرتړوني /و-/ ځينې نور الومورفونه هم لري چې هغه دخج په تغيير سره له وروستني سيلابې څخه ولومړني ته له استمراره څخه فعل ومطلق حالت ته تبديلوي. دوهم الومورف ئې دکړ نه تصريفي اشکال دي چې په مرکب

دول‌سره دمطلق حالت جوړونه کوی . دریم ډول الومورفونه ئی داستمرار صیغی
متناظری جوړی له بلی فعلی مادې څخه ورته راځی‌لکه : تلل ، ولاړل ؛ بیول ،
بوتلل اونور.

په (۳-۱۳) کی موږ ویوې داسی نتیجه ته ورسیدوکه په‌نحوی‌صورت‌توکی
چیری / ــ ل/ورستړونی والاصیغودبشپړحالت/ و ــ / سوتړونی یائی الومورفونه،
نه اخستل، نومعنی داچی نوموړې صیغه استمراری جمع غایب‌مذکر فعل‌نه دئ
بلکه پخپله مصدردئ . مثلا پاسته ویل اغیزناك دی. په دغه جمله کښی (ویل ) د
(وویل) په مقابل کښی نه شی راتلای. ځکه نودغه‌ئی مصدری شکل دی. مگـر
پوښتنه پیداشوه چی صفت اوفعل‌ئی ولی جمع دی. یعنی دپښتومصدر پخپل‌ذات کښی
جمع دئ که‌مفرد؟ که م فردوی جمع‌شکل ئی څه رازدئ‌او که جمع وی‌مفردئ په
څه شانی جوړیږی . حال داچی دلوړی چپتر دتعریفاتو له‌مخی څخه مصدر
فعلی اسم دئ اوداسمیت مشصات باید ولری. مگرز موږمصدری شکلونه داسمیت
له مخی څخه دمفرد صورت لـری خودجمع معنی او استعمال یاپه واقعیت‌کښی
دواړه خصوصیتونه فعلی دی نه اسمی. ځکه نو مصدرونه داستمراری جمع غاینو
افعالوانتقالی‌اشکال وبلل‌شول. نودوی هغه اشکال دی چی له فعله څخه ئی وده
کړیده یعنی!نه جامد دی اونه مشتق منـه . بلکه چیرنله Gerund یا تقریبا صرف
فعلی نومونه دی چی‌له فعله څخه‌ئی تکامل کړی دئ نه مصدر .

٦ (۱٤-۱۸٤): داچی متداول مصدریوصرف فعلی‌اسم دئ زموږحکم مطلق
نه بلکه نسبی دئ . ددغه واقعیت دموندنی له پاره موږد پښتونورفعلی نومونه له
مصدره سره دمقایسی‌له‌پاره پـه‌پنځلسوحالاتوکښی‌مقایسه کړل. یوازی په‌فاعلی
اومضاف حالاتوکښې‌زموږمتداول‌مصدراصلی اومغیره جمع‌حالتونه‌اخلی . په‌نورو
دیارلسو حالاتوکښی یوازی‌دمغیره جمع شکل‌پیدا کوی. په مقابل کښی‌ئی /ــ نه /
وروستړونی والافعل نوم دمقایسی‌له مخی‌څخه په فاعلی حالت کی څلورځایونه
نیسی اوپه‌الحاقیه حالت، استعلائی‌حالت اومضاف حالت هریوه کښی درې درې

صورته اختیاروی . نوروپاتوحالاتوکښی غبرګ صورتونه نیسی .دا /ــ نه/ وروستړونی والافعلی نوم نسبت و/ــ ل/ وروستړونی والافعل نامه ته دوه ګرایه ډیراسمی خصوصیتونه لری. نتیجه دا چی په لومړنی کښی دفعلیت خاصه غښتلی ده چی صرف فعلی نوم ځنی جوړوی اوپه اوستری کښی داسمیت خاصه بارزه ده څودی د ثانوی یاوضعی وظیفی چی هغه مصدریت دئ. ورګرځوی .

٦(١٥ـ١٠٥) :دلومړنی مبحث له تعریفاتوڅخه موږیوشمیرمصدری مشخصات وموندل چی ددوی اجماع دمصدرا کمال څرګندوی. هرڅونه چی دغه مشخصات بشپړه اوپوره برخه ولری هغونـی دمصدر په پیژندنه کی سووانی پښیږی. ځکه موئی هغه عمده خصوصیتونه دپښتودفعلی نومو په برخه کښی ترکتنی لاندی ونیول . ځینی خصوصیتونه دټولوفعلی نوموترمنځ یوشانی اومشترك دی مګر نوریئ له یوه څخه وبل ته لـږ ډیرتوپیر پیداکوی . مثلا لکه ترمخه چی موئی یادونه وکړه اسمی خصوصیتونه په /ــ ل / وروستړونـی والاصیغو کښی نسبت و/ــ نـه / وروستړونی والاصیغوته بـی سیکه اوکاواکه دی . یعنی لومړنـی د مفرد اوجمع شکلونه یانخښی نه لری خواوستری په دواړو مجهز دئ . په (٥،٦) کی وموږته داثابته شوه چی مصدرهره صیغه چی وی نه جامد دئ . اونه مشتق منه دئ. جامد ځکه نه دئ چی پخپله له اسم او صفته څخه جوړشوی وی . مشتق منه هم نه دئ ځکه چی داسی کم دلیل ئی دنبوودنی اوثبوت له پاره نشته . په ننني ژبپوهنه کی مشتق منه دیوې صیغی رینبوی برخه پیـژندله شویده. خو په تدریسی چاروکښی د فعلی نامه یوبشپړشکل چی دافهـام او تفهیم په خواوو کښی سروانـی پښووی دمصدر ترنامـه لاندی په وضعی ډول تباکل کیږی. (٥، ١٠) کی وموږته دارامعلومه شوه چی یوازی/ــ نه/وروستړونی والافعلی نوم په مقایسوی ډول دنوروګاونډو ژبوله مصدری اشکالوسره مشابهت اوحتی یوموقعیت لری. ځکه نودغه نخښی لرونکی فعلی نومونه په پښتوکی هم مصدرونه دی .

# کتلی کتابونه


۱ـ ابوعبدالله ومحمدالسورتی : قواعد عربی . هند ۱۳۴۲.

۲ـ اصفهانی ـ ضیاءالدین : ضیاءالصرف. طهران ۱۳۴۳.

۳ـ آموزگار ـ حبیب الله : صرف نحو آموزگار طهران ۱۳۵۲.

٤ـ ایازی ـ محمد اعظم: دپښتو قواعد . کابل ۱۳۲٤.

۵ ـ ( بیتاب ) صوفی عبدا لحق (مترجم): دروس نحوی کابل. ۱۳۰۵.

٦ـ پښتو مرکه : د پښتو پښویه (صرف و نحو افغانی) . کابل ۱۳۰۲.

۷ـ دین محمد: دستور پهلوی (قواعد دستور زبان پهلوی و مقایسه آن باقواعد صرف و نحوی فارسی) پنجاب ـ حال بازار .

۸ـ دا ر مستتهر : دپښتو څیړنی (مترجمین: رښتیا، حبیبی او بینوا) کابل ۱۳۲٦.

۹ـ رشتین ـ صدیق الله : پښتو گرامر . کابل ۱۳۲۷.

۱۰ـ رشتین ـ صدیق الله: دپښتو اشتقاقونه . کابل ۱۳۲۷.

۱۱ـ رشتین ـ صدیق الله: ژب ښودنه . کابل ۱۳٤۱.

۱۲ـ رشتین ـ صدیق الله: دپښتو مصدرو نو لاربنود. کابل ۱۳٤٤.

۱۳ـ قاری عبدالله: قواعد فارسی . کابل ۱۳۰۵.

۱٤ـ مفضور ـ موایناعلاؤالدین احمد: شرح فصول اکبری نولکشور ۱۸۸٤ (ع )

۱۵ـ مومند ـ محمد گل خان: دپښتو ژبی لیاره . لاهور ۱۳۱۷.

۱۶- وزارت فرهنگ : صرف ونحو قرائت عربی. تهران ۱۳۱۹.

۱۷- همایون‌فرخ- عبدالرحیم: دستور جامع زبان‌فارسی. تهران - علمی ۱۳۳۸.

۱۸- . . . . . . . . . اردو گریمر

۱۹- . . . . . . . . . اردوصرف ونحو

۲۰- عبدالرحمن الانباری النحوی الانصاف فی‌مسایل الخلاف (بین النحوین : البصریین والکوفین) قاهره: طبع ثالث ۱۳۷۵ق و ۱۹۵۵ع .

21. Bloch, Bernard and Trager, Geerge. **Outline of Linguistic Analysis,** Baltimere, Md. The Waverly press, Inc 1942.

22. Bloomfield, Leonard 1933, **Language,** New York: Holt, Rine-hart and Winston 1961.

23. Gleason, H. A. Jr. 1955, **An Introduction to Descriptive Linguistics,** New York: Holt, Rinchart and Winston, 1961.

24. Hocket, Charles F. 1958, **A Course in Modern Linguistics,** New York: The Macmillan Company, 1959.

25. Hall, Robert A. Jr. 1950, **Linguistics and Your Language,** New York: Doubleday & Company, Inc. 1960.

26. Morgenstierne, Georg. **Pashto Etemology,** Oslo:

27. Nida, Eugene A. 1946, **Morphology** (The Descriptive Analysis of Werds), Ann Arbor: The University of Michigan press 1961.

28. pike, Kenneth L. 1947, **Phonemics** (A Technique for Reducing Languages to Writing), Ann Arbor: The University of Michigan Press 1961.

29. ........ **English Grammer,**

30. Wren, p. c. **High School English Grammer,** Bombay: K. & J. Cooper, 18 h. ed.

31. **Encyclopedia Britannica,** 1962.

32. **Webster's Now International Dictionary,** 2nd. ed. and **Webster' New Collegiate Dictionary,** 1961.

33. Penzl, Herbert **A Grammer of Pashto:** A Descriptive Study of the Dialect of Kandahar, Afghanistan, American Council of Learned Societies, Washington, D. C. 1955.

# یوازی پرژبه باندی دلیکو نکی ځینی نوری لیکنی

پور (زوی) - کابل (مجله) کالنی گڼه ٥ او پر له پسی گڼه ٤٧٨ اسد ١٣٣٨

» » » » » » » ٦ » » ٤٧٩ سنبله ١٣٣٨

ژبه هغه‌ده چی پر ژبه وی - کابل (مجله) ٧ » » ٤٨٠ میزان ١٣٣٨

وایه (کلمه) » » » ٨ » » ٤٨١ عقرب ١٣٣٨

دژبی مبداء » » » ٣ » » ٤٨٨ غبرگولی ١٣٣٩

» » » » » » ٤ » » ٤٨٩ چنگاښ ١٣٣٩

کتنی او یادونی (انتقادی) کابل (مجله) ٥ » » ٤٩٠ زمری ١٣٣٩

ویه (ترجمه) » » ٨ » » ٥٠٥ لړم ١٣٤٠

دپښتو ژبی یو مړ ژاندئ خصوصیت ٣ » » ٥١٢ غبرگولی ١٣٤١

ژبنی مشترك تدریس » » » ٤ » » ٥٢٥ چنگاښ ١٣٤٢

دمذکر جمع کندهار (مجله) کالنی گڼه ١٠ » » ٢٢ جدی ١٣٤٠

زما لیکنه هم واوله » » » » » » » » » »

پښتو لیکنه » » » ١ » » ٦١ حمل ١٣٤٤